# له کندهاره تر اټکه

(د پښتو په کلاسیک ادب کې د لوېدیځې لهجې څرک)

څېړنه
د
محمد معصوم هوتک

# له کندهاره تر اټکه

(په پښتو کلاسیک ادب کې د لوېدیځې لهجې څرک)



څېړنه

د

محمد معصوم هوتک

بسم الله الرحمن الرحیم



## د کتاب پېژندنه


- د کتاب نوم : له کندهاره تر اټکه
- ښبړنه : د محمدمعصوم هوتک
- خپرونکی : علامه رشاد خپرندویه ټولنه/ کندهار
- کمپوز او ډیزاین : روهیال کمپیوټر اداره
- کمپوزر : خپله لیکوال
- چاپ کال : ۱۳۸۹ ش – ۲۰۱۰ ع
- چاپ شمېر : ۱۰۰۰ ټوکه
- کچه : ۱۳/۵۰×۲۱ سانتي متره
- د مخونو شمېر : ۳۴۴ مخه
- د خپرونو لړ : ۴۰



اړیکي:

۰۷۰۰۳۲۶۰۱۱

mrohyal@yahoo.com

# اهداء

په ژېپوهنه کې د لوی لاس څښتن او منلي عالم

## ډاکټر عبدالرازق پالوال

# مننه

ښاغلی ډاکټر **عبدالرازق پالوال** صاحب
د ډېري کورودانۍ مستحق دئ چي دا
کتاب ئې سر تر پایه وکوت او لیکنه ئې
باندي وکښله.

د **علامه رشاد خپرندویه ټولنه** د
کورودانۍ مستحقه ده، چي د کتاب چاپ
ئې پر غاړه واخیست.

د ګران **مطیع الله روهیال** د تندي **خولې**
خو زما د آثارو په تنظیمولو او **خپرولو کي**
وچېدو ته نه پاتېږي. پر همت، **احساس او**
ځواني دې برکت وي. زما دوعا ئې **تل**
ملګرې ده.

**م. معصوم هوتک**

# فهرست



## اول فصل



## دوهم فصل



## دریم فصل



## څلورم فصل

# د خپروونکي یادښت

د یوې ژبې په کره کولو او معیاري کولو کې د هغې ژبې د لهجو مطالعه او څېړنه او دغه راز د هغې د کلاسیک ادب ژبنی اړخ څېړل تر نورو ډېرو هڅو د لومړیتوب حق لري. د دغه راز څېړنې او پرتلې له لارې د لهجو د نژدېکت زمینه برابرېږي. د دې تر څنګ د هرې ژبې ویونکي باید خپل زاړه او متروک لغات را ژوندي کړي او د دودولو او استعمال لپاره یې کار وکړي، که چیرې په یوه لهجه کې یو لغت نه وي د بلې لهجې لغات یې پر ځای وکاروي، خو که د ټولو لهجو تر کتنې او پلټنې وروسته ثابته سي، چې نوموړې شي ته پښتو سوچه کلمه نه لرو نو په دوهم قدم کې د نوو لغاتو له وضع کولو څخه کار اخلو، خو د وضع صلاحیت او مسئولیت هم د یوه فرد یا یوه شخص دنده نه ده، د نوموړې دندې لپاره د هیواد په سطحه یو داسې صلاحیت لرونکی اکاډمیک مرکز چې د ټولو لهجو پوهان پکښې موجود وي کولای سي چې د ژبې لپاره نوي لغات وضع کړي.

"له کندهاره تر اټکه" د استاد محمد معصوم هوتک نوی څېړنیز اثر دئ، چې د پښتو د کلاسیک ادب سره د لوېدیځې لهجې ګډ مشترکات پکښې څېړل سوي دي.

استاد په ډېر زیار او دقت سره د کلاسیک ادب بېلابېل لهجوي اړخونه، مشترکات، سره ورته وراشې او اصطلاحات د پښتو د لوېدیځې لهجې په ځانګړې توګه د کندهارۍ لهجې د ویونکو د اوسني استعمال سره پرتله او مقایسه کړي دي، او په علمي او منطقي ډول یې دا ثابته کړې، چې د پښتو د کلاسیک ادب د سرلارو لهجه هغې لهجې ته ډېره نژدې وه لکه اوس چې د لوېدیځ افغانستان په ځانګړې توګه د کندهار پراخ ولس خبري په کوي، د دوی دغه علمي او اکاډمیک کار به په راتلونکي کې د یوې کره او معیاري پښتو د رامنځته کولو په هڅه کې د تیارو موادو په ډول وکارېږي.

په دې اثر کې د کلاسیک ادب ځیني مثالونه د اصل مأخذ په لیکدود راوړل سوي دي، چې د استاد د لیکني او لیکدود نمایندګي نه کوي. د هوتک صاحب دغه اثر د ژبې او یوې کره پښتو لېوالو ته په دې نیامت وړاندي کوو، چې د ژبې د کره کولو په موخه د استاد لار تعقیب کړي، څو د دغې منطقي لارې څخه وکولای سي خپله ژبه د پردو له اغېزې څخه وساتي.

**علامه رشاد خپرندویه ټولنه**
**کندهار**

# معیاري پښتو او دري وري پښتانه

سر ئې هوري يو دمغار بل کندهار دئ
تر دا منځ همه میشته واړه عبس دي

او ښ لـه باره سـره کـور ته ورغـلئ
په هوس د اوښ د غـاړي د جرس دي

خوشحال

قوم پر قبایلو باندي ځله وېشلئ، ښاخ – ښاخ، څانگي څانگي او بیدء دئ. نو دا قوم به لا تر څو بیدء وي، څوک به ئې څنگه ویښوي، څو غړي ئې د فهم او شعور خاوندان سوي وي؟ يئه، قوم بیدء نه دئ، نشه دئ، په چرسو او تاریاکو اخته دئ. "چرسي زوی، نه زوی، تاریاکي دوه په ایکي". څوک له نشیانو څخه نشه په یوء دم بندولای نه سي. ځکه چي په لېونتوب اخته کېږي او دا به تر بد هم بدتره وي چي د چا نشه په لېونتوب سره اووښتې وي. هاله به ئې چاره لا نوره هم گرانه سوې وي. دغه آني کار نه دئ، بل لا د زمانې په اوږدو کښي سو که – سو که تدریجي کار دئ. باید د نشه یي موادو پر ځای باندي عوضي الیشوني د پر هوښ راوستلو مواد وربرابر کړل سي او ورکړل سي. کله چي قوم پر سد سي، ویوهېږي، بیا نو هاله خپله ژبه او خپل نور ژوندون هم سمولای سي. ای توجه به ئې له نشه یي موادو څخه و نور ژوندانه ته ور اووښتې وي – په خپل تاریخ، په خپل ثقافت، او په خپله ژبه به پوهېدلي وي چي په دنیا کښي یو قوم بېله خپلي ژبي څخه نسته، او ژبه بېله قومه څخه نسته. که تاریخي ژبه پر ډېرینو کتیبو باندي یا په کتابونو کښي پاته وي او قوم ئې

مړ وي هغه ژبه هم مړه ژبه بلله کیږي.

د ژبي د مرگ یوه لار او عملیه دا ده چي متعصب کسان په لوی لاس او ناپوهۍ سره خپله ژبه له خلکو څخه پرېدي کړي. کله چي خلگ په خپلي ژبي کښي ناخوالي او گډوډۍ ویني، او په دوی کښي ئې زغم نه وي، دغسي کسان هرومرو و بلي گاونډي ژبي ته ورگرځي چي هغه به له دغسو لهجوي گډوډیو او ناخوالو څخه پاکي وي. نو کله چي له ژبي څخه یوه یا اوز دغسي د تېښتي لار یا لاري پرانیستلي وي، آیا دوی به ئې لا بیا هم په چاره نه پسې کیږي؟ په داسي حال کښي چي عاملان به ئې هم په خپله دوی وي.

که به څوک پښتون له خپل پښتانه قومه سره خواخوږیتوب لري، هغه به ئې هرومرو د دغه قوم له ژبي سره هم لري. که به دغسي څوک د پښتنو یووالۍ او اتحاد غواړي، نو ئې باید د ژبي د یووالي له پاره هم کار او هڅي وکړي. هره ژبه لویي او کوچنۍ لهجې لري. په رسېدلې ټولنه کښي تر دغو لهجو دپاسه یوه معیاري ژبه هم وي چي هغه ئې د ښوونځ، خپروني، او دفتر ژبه وي. د نورو لهجو ږغېدونکي مکلف دي چي دغه معیاري ژبه وکاروي. دغه معیاري ژبه باید عام فهمه وي، له گډوډیو څخه ژغورلې وي. په سرې سره باید ویاندان له دغه راز تشبثاتو څخه چي وروسته به ئې یادوءنه وسي منع کړل سي - مرسته ورسره وکړل سي، وپوهول سي.

که چا هر کله و معیاري پښتو ته وده ورکوله، هغوی باید دغه کار هرومرو له علمي لاري څخه وکړي، نه د لاس په پورته کولو سره چي "موږ" دي وکښل سي که "مونږ"؟ یوه ښه او گټوره لار ئې هم دا ده چي ښاغلي معصوم هوتک کار ځني اخیستئ دئ - ای د ختیځي او لویدیځي لهجې تر منځ ئې مشترکات او مشابهات موندلي او راسربېره کړي دي. د معیاري پښتو په جوړښت کښي دي و دغو او دغسي مشترکاتو او

مشابهاتو ته وده ورکړه سي. دغه د خلگو تر منځ له نژدېوالي او پوهاوي سره مرسته کوي.

بل دا چي يو شمېر منلي اصول دي طرح او تطبيق کړل سي – ای په خپرونو کښي دي عملي کړل سي. د څر ګندوني په توګه، آيا بشپړ پښتو لغاتونه غواړئ، که نيمګړي؟ آيا پښتو دي له ګرامري ګډوډيو څخه پاکه وساتله سي، که دي هسي ايله ورکړه سي – هر چا چي هر څه ويل او کول؟ آيا د کاتبانو تحريفات دي په کلاسيکو اشعارو او نثري متونو کښي اصلاح کړل سي، که دي همدغسي ومنل سي؟ آيا په صفاتو او افعالو کښي دي د تذکير او تأنيث توپير وساتل سي که دي هسي ايله ورکړه سي – هر څوک چي ئې هر راز وايي او کاږي؟ آيا د پښتو ژبي توري او ږوغونه دي، چي خوشحال يو دېرش (۳۱) شمېرلي ول، ببله عربي خاصو تورو څخه، او ببله د ووانو او يېګانو له توپيره څخه، هم په همدغه شمېر سره وساتل سي، که دي پنځه توري او ږوغونه ځني کم کړل سي چي ۲۶ توري سوي وي. له دغو پنځو تورو څخه مراد /څ، ځ، ژ، ږ، ښ/ او د دوی ږوغونه دي. آيا دغه ږوغونه بايد په ژبه کښي ورک او نست کړل سي، داسي چي په /س، ز، ګ، خ/ سره اړول سوي وي يا اليش کړل سوي وي، که دي وساتل سي؟ په ساتنه کښي بايد د معياري پښتو زغرد ږوغونه او توري وي چي په وينګ او کښنګ کښي ئې بايد وياندانو او ليکوالانو په هر ځای کښي مراعات کړئ وي. ګټه يا ښېګني به ئې څه وي؟ يوازي د تورو او ږوغونو ډېر ښت؟

**شپږ – اووء کاله ترمخه زء په کابل کښي يوء ټکسي ته ور وختم. ټکسي وان هغه ځای ليدلئ نه ؤ چيري چي زء تلم. دء ويل چي دی و کابل ته نوی راغلئ دئ او ترمخه ئې په پېښور کښي ټکسي چلاوء. دء له ما سره ښه وضعيت کاوء. دء راته وويل چي ته تش لار راوښيه، زء دي هر ځای ته بيايم او کريه چي دي هم هر څو راکړه. دء ويل کله چي به په**

پېښور کښې کندهارۍ و ټکسي ته راوختئ او له ما سره به ئې پښتو ويله،
و ما ته به ئې داسي خوند راکاوۀ لکه زما په مورنۍ ژبه چې به راسره
رږغېدئ. په هر څه ئې پوهېدم، او د فهم هيڅ تکليف مي نه لارۍ. خو
پېښوريان يا نور چې به راسره رږغېدل زۀ به په فکر کښې ډوب وم چې
مقصد ئې څه دئ. په آسانۍ سره نه په پوهېدم.

ولي و کابليانو او نورو فارسي زبانانو ته د سهېل – لوېديځ پښتو، چې
د کندهارۍ پښتو په نامه سره پېژندله کېږي، آسانه او عام فهمه ده؟ دا
ځکه چې د پښتو هغه خاص پنځه رږغونه، او په سرې سره /ژ، ږ، ښ/
رږغونه له اردو او دري ژبو له /چ، ز، ش/ رږغونو سره مشابهت لري. د
پښتو او دري د دغو رږغونو اوازونه سره ورته او د تلفظ مخرجونه ئې په
خوله کښې سره څرمه يا سره نژدې دي. نو لغتونه ئې هم داسي دي چې
ځيني څرگندوني ئې په لاندي ډول سره دي:

| | |
|---|---|
| ژلئ: | ژاله، جاله |
| ژور: | ژرف |
| نژدې: | نزديک |
| ژوونه: | جويدن |
| ژوند: | زندگی |
| ژړ: | زرد |
| کوږ: | کج |
| ږنگ: | زنگ |
| ږغ: | چيغ |
| غوږ: | گوش |
| غېږ: | آغوش |
| مږه، موږک: | موش |
| مېږ: | مېش |

| | |
|---|---|
| تږۍ: | تشنه |
| کږدۍ: | غژدي |
| پړۍ: | پڅ |
| کوښښ: | کوشش |
| پوښ: | پوش |
| پوښښ: | پوشش |
| کښتۍ: | کشتي |
| لښکر: | لشکر |
| روښان: | روشن |
| ښار: | شهر |
| خښم: | خشم |
| خوابښې: | خوشو |

د پښتو او دري دغه تلفظي او هم خطي مشابهت او نژدېوالۍ دۍ چي دري ژبي ږغېدونکي په کندهارۍ لهجه تر نورو ښه تره پوهېږي او هم ئې په اورېدني باندي خوند اخلي، په سرې سره چي ئې بيا بدلي او سندري اوري. سره له دغسي عمومي امتيازه چي عام فهمي ده، بيا دي هم څوک و دې ته زړۀ ښه کړي چي /ژ، ږ، ښ/ دي ئې نست کړي – اى په /ج، گ، خ/ سره ئې اړولي وي.

د پښتو لهجو تر منځ هغه خورا زغرده ناخواله دغه د /ژ، ږ، ښ/ اړول په /ج، گ، خ/ سره دي چي د ختيځي او لوېديځي پښتو تر منځ ئې نه رغېدونۍ بېلوالۍ را پيدا کړۍ دۍ.

ب – اوس به د دوو نورو داسي ناخوالو يادوۀنه وکم چي که به موږ د خپلي ژبي ښېگني غواړو بايد مخنيوى مو ئې کړۍ وي. دغه ناخوالي لهجوي نه دي، بل لا په ژبه کښي گډوډۍ پېښوونکي دي. لومړى په امريکا ږغ راديو کښي، او اوس ئې و کابل راديو ته هم سرايت کړۍ دۍ.

دغه ناخواله د ټپي او ټپيانو تر منځ د مفرد او جمع توپیر نست کول دي. د څرګندوني په توګه وايي چي يو نفر ټپي سوئ دئ، او پنځه نفره ټپي سوي دي. خو په مغيره (مجرور) حالت کښي نه وايي چي د ټپيو حال نازک دئ. په دغه حالت کښي بيا وايي چي د ټپيانو حال نازک دئ؟ همدغسي نه وايي چي ښځي ټپي، ئې و روغتون ته رسولي دي، بل لا وايي چي ښځي ټپياني ئې و روغتون ته رسولي دي.

دغه هم عقلي ګډوډي ده او هم ګرامري ګډوډي ده. دغه د هغه چا له خوا څخه و ژبي ته ورکښې ايستله سوې ده چي دوی په دري ژبي محيط کښي لوی سوي او هم و دري ژبي ښوونځونو ته تللي دي. دا ځکه چي په دري ژبه کښي د مفرد او جمع تر منځ توپير نه کېږي – يک نفر زخمي شده است؛ پنج نفر زخمي شده اند.

ج – بل دا چي د افغانستان په راديوګانو کښي عيدالفطر هر ځای کوچني اختر يادېدئ، خو د آزادۍ راديو کمکی اختر وباله او امريکا ږغ راديو ووړ اختر يا وړوکی اختر وباله. دا په داسي حال کښي چي د دوی په لهجو کښي تر پرونه پوري و اختر ته عيد ويل کېدئ. نن ئې ووړ يا کمکی بولي.

د – بله ناخواله د پښتو ويياندانو توري په توري ترجمه ده. پښتو ويياندانو لا تر اوسه پوري د دې استعداد او لياقت موندلئ نه دئ چي دوی دي له اصلي منبع څخه په خپله ترجمه وکړي. دوی ئې له دري ترجمې څخه ترجمه کوي، او نو ځکه ئې ترجمه د دري تقليدي ترجمه وي. دا به ښه تره وي چي دوی خبرونه، راپورونه، نوري تبصرې او مضامين په خپله له اصلي منبع څخه ترجمه کړي وي. ولي د خپرونو په آمريت کښي، په حکومت کښي، زموږ په غونډه پښتني ټولنه کښي داسي د فهم وړ کسان نسته څو دوی ئې له دغسي يو راز او بل راز ناخوالو څخه منع کړي وي؟ څرګندوني ئې په لاندي ډول سره دي:

| دري ترکيب | تقليدي ترجمه | پښتو بوب معادل |
| --- | --- | --- |
| ۱. لباس سبز به تن دارد. | زرغونه کالي يې په تن دي. | زرغونه کالي ئې اغوستي دي. |
| ۲. پنج سال عمر دارد. | پنځه کاله عمر لري. | پنځه کلن دئ، د پنځو کالو دئ. |
| ۳. طفل لادرک است. | ماشوم لادرکه دئ. | کوچني ورک دئ. |
| ۴. دست آوردهای دارد. | لاس ته راوړني لري. | پيداوي، برياوي، موندلي لري. |
| ۵. اشخاص دست بوس اند. | لاس پوځي کسان دي. | غوړه مال، غوړه مالان، چاپلوسان دي. |
| ٦. دست آويز | لاسوند | سند، ثبوت |
| ۷. اطاق تجارت | د تجارت خونه | د تجارت دفتر |
| ۸. په راه انداخته است. | په لاره اچولي دي. | پيل کړي دي، سره پرله پسې کړي دي. |
| ۹. از بين برده | له منځه وړي دي. | تباه کړي دي، نست کړي، وران کړي دي. |
| ۱۰. چشم به راه | سترګي په لار | لار به مو څارو، و لاري ته به مو ګورو؛ په خپل راتګ سره مو ونازوئ؛ د خپل راتګ وياړ راوبخښئ؛ په خپل راتګ سره مو سرلوړي کړئ (هم ووينئ د دې کتاب ۵۲ مخ) |

که دغه راز تقلیدي ترجمه نوره هم دوام پیدا کړي، او په نورو
ولایاتو کښي ئې هم د کندهار غوندي ویاندانو ړوند تقلید کړئ وي، له
پښتو څخه به ترجمه کړې ژبه جوړه سوې وي. آیا د فهم خاوندان دغسي
ترجمه سوې پښتو غواړي؟ ولي ئې د فهم احساس، اصلاح او مخنیوی
نسته؟

هـ – پر پښتو ویاندانو او لیکوالانو باندي دري ژبي یوه بله جوړه
اغېزې هم کړي دي چي زه ئې د ټولني په ژبه کښي څرک نه وینم. دغه
داسي دي:

| | دري ترکیب | تقلیدي اخیستنه | پښتو ساده څېره ئې |
|---|---|---|---|
| ۱. | چند باب مکتب دارد. | خو بابه ښوونځي لري. | خو ښوونځونه لري. |
| ۲. | دو قاب ساعت دارد. | دوه قابه ساعتونه لري. | دوه ساعتونه لري. |
| ۳. | یک زنجیر اسپ است. | یو ځنځیر آس دئ. | یو آس دئ. |
| ۴. | سه پایه کمپیوتر است. | دري پایې کمپیوترونه دي. | دري کمپیوترونه دي. |
| ۵. | کشف شش حلقه ماین. | د شپږو حلقو ماینونو کشف. | د شپږو ماینونو موندل. |

د باب، قاب، ځنځیر، پایې او حلقې له پاره په ژبه کښي ضرورت
څه دئ؟ ولي باید دغه اضافي لغت پوري وتړل او وویل سي؟ په داسي
حال کښي چي نوټ بوک او لیپ ټاپ کمپیوټر به هیڅ پایې هم نه ولري.

و – یادوءني خو خورا ډېري دي چي یو بل غوندې کتاب پر کښل
کېدای سي. نو څکه مي وروستنۍ د اندېښني وړ یادوءنه د سمونوال لغت
کارول دي. د یوء شخص غلطي یوازي د دءِ په تناسب ده. خو د یوء گوند
غلطي د هغه د ټولو غړو د شمېر په تناسب ده. د پولیسو او ترافیکو و یوء
یا بل مشر ته سمونوال ویل معقولیت نه لري. پولیس ساتنوالان دي، او
مرکز یا اداره و دفتر ئې ساتنوالي کېدای سي.

ترافیک د عراده جاتو په عبور و مرور کښي نظم و نسق راولي یا ئې
دغه کار دئ. دوی پر لار کوونکي دي.

سمونمل او سمونوال و داسي کسانو ته ویل کېدای سي لکه مدیران او رئیسان چي دوی د ډېرو بېلابېلو څانګو په کارونو کښي سمون راولي، یا دغه ئې وظیفه او کار دئ چي دوی باید د سمون او سماوو ماهران وي، او له دوی څخه د دوی په اړونده څانګو کښي د سمون او سماوو توقع کېږي چي دغه ئې کار او مسلک دئ. و ادارې ته ئې کېدای سي چي سمونوالي وویل سي لکه د کرهنې سمونوالي، د اقتصاد سمونوالي، د تجارت سمونوالي، د ورهني (صنعت) سمونوالي او هم نوري داسي.

ز – زۀ چي له اصلي موضوع څخه لږ و ډېر وتلئ وم اوس به بیر ته وروګرځم. پر ځای د دې چي د نورو غوندي ئې لهجې پاللي او تقویه کړي وي، ښاغلي محمدمعصوم هوتک ئې د سره نژدې کولو زیار ایستلئ دئ. دا چي د دۀ کار نور هم پیاوړئ سوئ وي، دی دي په هغو بیتونو کښي چي دۀ د استناد له پاره ور اخیستي دي او په هغیو کښي د کاتبانو تحریفات سته، دغه تحریفات دي ئې په داسي ډول سره وښووي چي د کلاسیکي پښتو لغت دي له څنګه سره په پټریانو کښي دننه ورته وکاږي. ځیني څرګندوني ئې داسي دي:

١ – څنګه چي د کلاسیکي پښتو هر یو سپونئ "څخه" په "نه" سره اړول سوئ دئ، نو دي د "نه" له څنګه سره، هر چیري چي به وي "څخه" په پټریانو کښي [څخه] ورته وکښل سي.

٢ – دغسي هم د کلاسیکي لهجې هر "پر" په "په" سره الیش سوئ دئ، نو دي د "په" له څنګه سره په پټریانو کښي [پر] ور زیات کړل سي. ما ئې په لومړني سر کښي تر ځینو لاندي کرښه کش کړې ده، او نور مي په خپله و لیکوال ته ور پرې ایښي دي. ځکه چي دی په خپله هم د "په" او "پر" په توپیر پوهېږي، نو زما و نخښي ته څه اړتیا ده.

٣ – دغه راز دي هم "کي [کښي] او پکي [پکښي]" وکښل سي. دوی دغه کلمات دغسي ویل او کښل.

۴ – دغسي دي هم له نورو تحريفاتو سره د کلاسيکي پښتو لغت يا ترکيب وکښل سي. د ځرګندوني په توګه پر شلم مخ باندي د خوشحال و يوه بيت ته، د اوسنی لهجې، "لاړ وو" ور کښې ايستل سوئ دئ. دغه دي هم په لاندي توګه وکښل سي:

نوم ئې لاړ وو [تللئ] تر دکن تر قندهاره

۵ – بله يادوءنه مي دا ده چي په کتاب کښي سر تر پايه د مفرد غائب ضمير "ئې"، د مفرد مخاطب فعل "يې" غوندي کښه سوئ دئ. د دغو دوو تر منځ توپير لازمي دئ. په نورو ليکنو کښي هم دغه توپير نه مراعات کېږي. يوه ځرګندوءنه به ئې هم درکم:

ته ئې دوست يې.

لومړنی "ئې" د مفرد درېيمګړي ضمير دئ، او دوهم يا وروستنی "يې" د مفرد مخاطب فعل دئ. "ئې" له غايب سره اړه لري، او فعل "يې" له مخاطب "ته" سره.

٦ – ټول هغه کلمات چي تر ځېړني لاندي وي، بايد په بيتونو کښي غورس کړل سي څو لوستونکی، ورته ځير کړل سوئ وي*.

۷ – په ۴۸ – ۴۹ مخ کښي د خوشحال يو بيت ځېړل سوئ دئ، چي بيت ئې داسي دئ:

عشق يو هسي يو دېرشم توریٔ رازده کړ
چي په دېرش توري [تورو] څکوم [څخوم] د قلم کيلي

ښايي خوشحال به د عشق پر مهال د الف او همزه (ا – ء) تر منځ په توپير پوهېدلی ؤ، نو دی به دغه دوهم توري (ء) ته هم ځير سوئ ؤ چي ...غه سره نو رشتيا هم د دء د پښتو توري يو دېرش (۳۱) کېږي.

نه عشق، نه وصال، نه هجران، او نه بل څه دی د ووانو /و/ او ياوو

---

* مونږ له کلاسيک ادب څخه د را اخيستل سوو مثالو له سمېدو پرته د ښاغلي پانرال

/ی/ تر منځ و توپیر ته ځیر کړئ ؤ چي په پښتو کښي درې رازه واوونه او درې رازه یاوي سته چي په دغو سره به نو د پښتو ږوغونو او تورو شمېر پنځه دېرش (۳۵) سوئ وي.

د خوشحال د پښتو تورو له وراخستني څخه خو د ښاغلي معصوم هوتک نیت و نیامت دا دئ چي په کلاسیکه پښتو کښي خوشحال /ژ، ږ، ښ/ داسي نه تلفظ کول لکه نن چي په هم هغه چاپېریال ختیځه پښتیانا کښي د /ج، گ، خ/ غوندي ویل کېږي. ای هغه او دغه دوې لهجې د ورځي او شپې غوندي ځله بېلي وې، او په تحریفاتو سره یووالئ ورکول کېدای نه سي.

ډاکټر عبدالرازق پالوال

۲۵ وږی ۱۳۸۹

کندهار

# بسمه تعالی

ما ته چې به د خوشحال ختک (۱۰۲۲ - ۱۱۰۰هـ ق) له ژبې سره د خپلې لهجې مشابهتونه ځای ځای په مخه راتلل، هر وخت به مې فکر کاوه، چې که په دې برخه کې څېړنه وسي، د پښتو په خیر به تمامه سي او د معیاري پښتو د منځته راتګ له جریان سره به مرسته وکړي، خو د خپلو پښتنو وروڼو بېځایو او بې موردو حساسیتونو به هر وخت په دغه برخه کې د علمي کار او څېړني څخه خواتوري کولم. یو وخت چې مې له ګوربت مجلې (لومړی کال، ۶ ګڼه - ۲۵مخ) سره د خپل خواخوږي استاد علامه رشاد رحمة الله علیه مرکه په پردېسۍ کې وکتله او په هغې کې مې د علامه مرحوم له خولې ولوستل چې د لهجو قطعي ترک په هیڅ ژبه کې نسته او په دې باب"... تاریخي سلسلې باید سړی په نظرکې ونیسي. کوم وخت چې فیصلې سره کېږي، هغه وخت پر دې مفصل بحث په کار دی...". نو مې له ځانه سره عزم وکړ، چې د دغو تاریخي سلسلو یوه برخه به هرومرو څېړم. په دې ترڅ کې زه په نورو کارو مصروف سوم او کله چې د ډاکتر عبدالرازق پالوال (معیاري پښتو) کتاب راووت او په هغه کې مې د دوی دغه سپارښتنه ولوستله، چې وایي: "پښتانه دي د تقلید پر ځای باندي پالنه غوره کې

... پښتانه پوهان، اديبان، او ليکوالان دي خپل کلاسيک آثار وپالي چي خوشحال، رحمان، حميد، قادر او نورو په ميراث ورپرې ايښي دي. دوی دي دغه خپل مُثُل اعلی وګرځوي او د فهم له مخي څخه دي ئې پالنه وکي څو په دغه کار سره ئې د دوی امانت لغات او جملات بشپړ او منظم ساتلي او پاللي وي"[1]. نو مي پخوانی عزم، جزم سو او کله چي بيا د پوهاند ډاکتر مجاوراحمد زيار (د خوشال ادبي پښتو) کتاب لاس ته راغی[2] په ما کي ئې بيرته د خپلو کت سوو پاڼو د بيا رااخيستلو او سره اوډلو هڅه ژوندۍ کړه. د ډاکتر پالوال صاحب او ډاکتر زيار صاحب په کتابو کي ډېر داسي مطالب راغلي دي، چي زه ئې پر خپله څېړنه باندي نور هم باوري کړم. دغه راز آثار د معياري ژبي تر ټاکلو وړاندي ډېر ضروري دي او زه هيله من يم، چي د ژبي دغه پياوړي استادان دغه شان نوري څېړني هم پر "خوارکۍ" پښتو باندي ولوروي.

زه په دې حاضره ليکنه کي د خوشحال خټک اونورپښتو کلاسيک ادب ژبه له خپلي هغي ژبي سره مقايسه کوم، چي د مور په

---

[1] معياري پښتو – ۱۸مخ.

[2] د ډاکتر پالوال کتاب په ۱۳۸۴ ش کي خپور سو خو ليکلی ئې د وخته وو او د ډاکتر زيار کتاب واردواره په ۱۳۸۲ش کي او دوهم وار په ۱۳۸۴ش کي چاپ سو. ما ته د ډاکتر زيار کتاب د ۱۳۸۶ ش = ۲۰۰۷ع په نومبر کي په لاس راغی. دغه وخت زيار صاحب کاناډا ته تشريف راوړی وو او ما ته ئې دغه کتاب د ښاغلي رحمت آريا له پاره راکړ. ما د ښاغلي آريا په اجازه له ځانه سره وساته، چي له مطالبو څخه ئې ګټه واخلم. که څه د ډاکتر پالوال صاحب د کتاب د مستدلو او مفصلو څېړنو په موجوديت کي به زما د دې کتابګوټي خپرول، "تکرارمکرر" وي خو ما خپله کښنلې خواري هيسته نه سوای غورځولای او که تکراري هم وي، له درنو لوستونکي سره ئې په دې نيامت شريکوم، چي ګوندي څه ګټه به ځني واخيستلای سي.

غبرګ کې مې زده کړې ده، د خالپوڅو (خاپوړو – خاړپوڅو) پر مېنه مې پسې تعقیب کړې او له وړکینې څخه تر زاړه سن پورې په بړغېدلی یم او لا اوس هم په بړغېږم، له دېرشو څلوېښتو کالو راهیسې مې شعوري څېړنه پکښې کړې ده او قلم مې پکښې چلولی دئ. په دې مقایسه کې مې تر زیاتې اندازې پورې دخوشحال خان اودده دکورنۍ ژبه په پام کې نیولې ده خوپرڅنګ مې دکلاسیک ادب نورآثاردخپلې څېړنې دپیاوړتیاپه نیامت هم پر کتلې دي.

زه په دې څېړنه کې د خوشحال ژبه له هغې پښتو سره ایږدم، چې ما د مقر (مکور – مرکور) د پښ له کندې څخه تر فراه پورې، له روزګان څخه تر کوټې و قلات (بلوچستان) پورې، له لښکرګاه – بُست (هیلمند) څخه تر لکې و صفار پورې اورېدلې ده. دغه لغاتونه چې زه ئې تر څېړنې لاندې نیسم، د دغې پراخې حوزې په یوه یا څو برخو کې ما اورېدلي او تحقیق کړي دي او یقین مې دئ چې ښایي یوه زیاته برخه به ئې همدا اوس هم د خلګو په خولو کې متداول وي او بله برخه به ئې ښایي اوس دونه عام رواج ونه لري او یا ښایي اوسنی نسل به ئې پخپله ورځنۍ محاوره کې نه کاروي، خو ما دا ټول په سرې سره اورېدلي دي، په معنا کې مې غور کړی دئ، د استعمال موارد مې په یاد دي.

زه نه غواړم په دې څېړنه کې وښیم، چې د خوشحال ژبه کټ مټ زما د لهجې ژبه ده او په دې ډول ځان او خپلې لهجې ته امتیاز وګټم. زه غواړم چې د خوشحال د ژبې او زما د مورنۍ لهجې تر منځ مشابهتونه وښیم. دغه لغات چې زه ئې پخپله لهجه کې څرک درکوم، ښایي په نورو لهجو کې هم ژوندي او مروج وي. زما یقین دئ چې دا شان مشابهتونه د نورو لهجو ویونکي هم موندلای سي. د پښتو لهجې خو د

يوې وني ښاخونه دي. اصل ئې يو او تاداو ئې يو دئ:

در اصل مذهب همه صاحبدلان يکيست
از ناقـــلان بدسخن اينجا رسيده است

خو زما د خپلي مشاهدې او څېړني له مخي راته معلومه سوې ده، چي که دغه لغتونه په نورو لهجو کي موجود هم وي، بيابه ئې تلفظونه توپير سره لري، د استعمال ځاى به ئې متفاوت وي او نور راز راز بدلونونه به باندي راغلي وي.

ما دا څېړنه له دې اسيته هم کړې ده، چي په دې وختو کي هڅه کېږي د لوېديځي لهجې ټولي گرامري او تلفظي ځانگړتياوي د دغي لهجې په بېنظميو، گډوډيو او بې قاعدې گيو کي وشمېرلي سي. لوستونکي به د دې کتاب په راتلونکو پاڼو کي وگوري، چي د دې ځانگړتياوو له پاره پاخه کلاسيک تاداوونه موجود دي.

ما چي له خپلي څېړني څخه کومه نتيجه رااېستلې ده، د هغې پر بنسټ باندي ويلاى سم، چي د خوشحال خان او نور کلاسيک ادب د ژبي زياتره گرامري جوړښتونه، لغتونه، ترکيبونه او وراشې په لوېديځه لهجه کي تر ننه لا هم خوندي دي. ما ته د خپلو مقايسوي څېړنو له مخي ښکاره سوې ده، چي لوېديځه لهجه د نورو لهجو په نسبت د لرغونو ځانگړتياوو په خوندي ساتلو کي محافظه کاره پاته سوې ده.

ما ته ثابته سوې ده، چي په کلاسيکه پښتو کي د سوچه توب تمايل کورټ نه ليدل کېږي، بلکي د هغه پر خلاف ئې د نورو ژبو د

کلماتو د هضمولو قابليت ته لاد لاسه وده ورکوله[۴]. د سوچه پښتو او د سوچه کولو ذهنيت زموږ پر ژبه باندي وروسته راخپور سوی دئ. د دې ذهنيت تر شا سياسي انګيزې پر تې وې او دي.

ما ته دا هم ثابته سوې ده، چي د پښتنو د ژوند اجتماعي، اقتصادي او سياسي شرايطو د هغوی ژبي ته د هغوی د استوګني د مېني په تناسب د ودي او تکامل بېلابېل استقامتونه ورکړي دي. د هغوی د ژبي د پرمختګ آهنګونه ئې متفاوت کړي دي، د هغوی د ادبي او ژبني فعاليتو لوري ئې پر مشخصو او سره بېلو جهتو باندي روان کړي دي. زه د خپلي دغي ادعا د ثبوت له پاره د ډيورند د منحوسي کرښې د دواړو غاړو پښتنو د ادبي او ژبني تحرک جريان ته اشاره کولای سم، چي نه ئې د انکشاف او پرمختګ سرعتونه سره يو دي، نه ئې د ژبنيو او ادبي ايجادياتو ساحې سره ورته دي او نه ئې د ژبني جوړښت شکل او محتوی سره يو راز پاته سوې ده.

ما په دې څېړنه کی د خوشحال خان ختک له آثارو څخه د هغه غزليات او قصايد (يوه برخه)، دستارنامه، سواتنامه، فراقنامه غوره وګڼل. د طب نامې ژبه د طبابت ژبه ده او د بازنامې دا هم د يوې ځانګړي تخصصي ځانګي ژبه ده او د خوشحال د لهجې په څېړنه کي ډېره مرسته نه سي کولای. سره له دې مي دا دوه اثره هم له پامه پر يوه مخ نه دي ايستلي او مرور مي پر کړی دئ. د خپل کار په جريان کي مي د خوشحال خان او د هغه د کورنۍ د غړو دا لاندي چاپي او خطي نسخې کتلي دي:

---

[۴] وګ : د خوشحال، حميد مومند، کاظم خان شيدا او نورو دېوانونه. د دوی په کلام کي د فارسي وعربي لغاتو پرېماني پر دې خبره دلالت کوي، چي دغو شاعرانو د نورو ژبو له لغاتو سره هيڅ راز ستونزه نه درلوده.

**۱ـ د خوشحال ختک مرغلري:**

د لوی استاد علامه عبدالحي حبيبي له خوا په ۱۳۱۷ ش کال په کندهار کي خپور سوی دئ.

**۲ـ ارمغان خوشحال:**

د میان سیدرسول رسا په زیار په ۱۹۶۴ع کال د یونیورسیټي بُک ایجنسۍ له خوا په پېښور کي خپور سو. ما چي له کومي نسخې څخه استفاده کړې ده، ښاغلي عبدالباري جهاني له خپل کتابتون څخه رالېږلې ده چي مننه ځني کوم.

**۳ـ سواتنامه د خوشحال خان ختک:**

د پوهاند عبدالحی حبیبي له سريزي او څرګندونو سره د افغانستان د علومو اکاډیمۍ د ژبو او ادبیاتو انستیتوت له خوا په ۱۳۵۸ ش کال په کابل کي خپره سوه.

**۴ـ دستارنامه:**

دستارنامه د خوشحال ختک د ۲۸۶ تلين په مناسبت د پوهاند صديق الله رشتين په سريزه د پښتو ټولني له خوا په ۱۳۴۵ ش کال خپره سوې ده. دغه راز د پښتو اکېډيمي پېښور له خوا د پروفيسر محمدنواز طائر په سريزه او د حاجي پردل خان ختک په زيار په ۱۹۹۱ع کال چاپ سوې ده. ما (هوتک) په دې حاضره ليکنه کي زياته استفاده د پېښور له چاپه کړې ده.

**۵ـ دخوشحال ختک کلیات ـ لومړی ټوک:**

د پوهندوی دوکتور ګل محمد نورزي په سريزه او څېړندوی محمد صدیق روهي په پېژندګلوۍ د افغانستان د علوموااکاډیمۍ د ژبو او ادبیاتو د انستیتوت د ادب او فولکلور څانګي له خوا په ۱۳۵۹ ش کال خپور سوی دئ.

دا متن که څه هم له "خو" څخه خلاص نه دئ خو بیا هم تر بل هر متن ما ته دقیق ایسي ځکه چي د هغي نسخې بدیلونه ئې هم راوړي دي، چي د خوشحال خان په ژوند کي لیکل سوې ده او ویل کیږي، چي د خوشحال پخپل خط ده[۴].

۶ـ د خوشحال رباعیات:

د پوهاند رشتین په سریزه (پاییزه) د پښتو ټولني له خوا په ۱۳۴۹ ش کال په کابل کي خپاره سوي دي.

۷ـ فراقنامه:

د زلمي هیوادمل له سریزي، څرګندوونو او ویي پانګي سره د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي له خوا په ۱۳۶۳ ش کال خپره سوې ده. په سر کي د علامه پوهاند عبدالحي حبیبي، پوهاند میرحسین شاه په قلم یاداښتونه (پښتو او پارسي) هم لري.

د فراقنامې متن د اعتماد وړ دئ، ځکه په تهیه کولو کي ئې له ډېرو نسخو (چاپي او خطي) څخه کار اخیستل سوی دئ. زه فکر کوم چي د خوشحال د کلام د ژبنیو خصوصیاتو په څېړنه کي حساب پر کېدلای سي خو بیا هم ما د هغه متن څخه د رااخیستل سوو برخو مقابله له نورو چاپو سره له پامه نه ده ایستلې.

۸ـ د عبدالقادر خان خټک دېوان:

واردواره د علامه عبدالحي حبیبي په همت له کندهار څخه په ۱۳۱۷ ش کال خپور سوی دئ او دوهم وار د افغانستان د علومو

---

(۴) د (خوشحال ادبي پښتو) په ۲۱ مخ کي د استاد بختاني په حواله د خوشحال خان د خپل لاس کښلې نسخه "په پېښور کې راخوندي شوې فضلنامه" ښوول سوې ده. په دغه مخ کي د استاد له نامه سره د "ع" راوړل، چي معمولاً د "علیه السلام" لنډیز دئ،

اکاډیمۍ د ژبو او ادبیاتو د مرکز له خوا د نورالله ولسپال په سریزه، تحشیه، تصحیح او مقابله د پوهاند عبدالشکور رشاد تر لارښوونې لاندې په ۱۳۶۸ ش کال کې خپور سوی دئ. په سر کې د پوهاند رشاد، پوهاند عبدالاحمد جاوید او سرمحقق محمدصدیق روهي په قلم یادابښتونه هم لري.

ما له دواړو چاپو څخه استفاده کړې ده، خو ډېره تکیه مې پر دا دوهم چاپ کړې ده. د عبدالقادر خان نوی چاپ دېوان سره له دې چې په دقت تهیه سوی دئ خو د لیکدود تجانس ئې یو څه کمزوری دئ.

**۹ـ د کامګار خټک دېوان:**

د افغانستان د علومو اکاډیمۍ له خوا د څېړونکي عبدالمتین متین په زیار په ۱۳۵۸ ش کال د خوشحال خټک د درېم تلین د بین المللي سیمینار په مناسبت خپور سوی دئ. په سر کې د څېړندوی محمدصدیق روهي یو یادابښت هم لري.

**۱۰ـ د هجري دېوان:**

د همېش خلیل په زیار په ۱۹۵۸ع کال د پېښور په شاهین برقي پریس کې چاپ سوی دئ.

د دې تر څنګ مې په ځینو برخو کې د کلاسیک ادب دا لاندې دېوانونه هم پر کتلي دي:

**۱۱ـ د عبدالرحمن بابا دېوان:**

په ۱۹۷۶ع کال د یونیورسیټي بُک ایجنسۍ له خوا خپور سوی دئ د میاسیدرسول رسا په قلم اوږده دیباچه لري. دا چاپ د پادري هیوز په لاس د خپاره سوي دېوان فوټوکاپي ده. د دې خبري یادونه د دیباچې په ۱۷ مخ کې سوې ده.

**۱۲ - د عبدالحمید مومند کلیات:**

دا کلیات د محمدآصف صمیم په سریزه، څېړنه، اوډون او وییپانګې سره د دانش خپرندویې ټولنې له خوا په ۲۰۰۴ ع کال خپور سوی دئ، چې د عبدالحمید مومند دېوان، نیرنګ عشق او قصه شاه وګدا لري.

ما په دې حاضره لیکنه کې پر دغه کلیات سربېره د عبدالحمید مومند دیوان (د زلمي هیوادمل په زیار - ۱۳۶۳ش)، د عبدالحمید مومند دېوان (د صدیق الله رشتین په زیار - ۱۳۳۰ش)، دُر او مرجان (مرتبه سید انوارالحق جیلاني - ۱۹۷۸ع) او زما د کتب خانې د نیرنګ عشق له خطي نسخې څخه استفاده کړې ده.

**۱۳ - د میرزاخان انصاري دېوان:**

دا دېوان د څېړنمل دوست شینواري په زیار ترتیب سوی دئ (۱۳۵۴ش). د دې دېوان په باب په زړه پوري خبره دا ده، چې په ټول دېوان کې ئې (چې) د (چه) په شکل کښلی دئ. اروابناد دوست شینواری پخپل وخت کې منلی ژبپوه وو او د ژبې په باب ئې درانه آثار کښلي دي. ده چې په دغه دېوان کې (چه) په همدې شکل راوړی دئ آیا معنا به ئې دا نه وي چې ده دا کلمه په اوږده (ې) نه تلفظ کوله؟

د میرزاخان انصاري پر دغه دېوان سربېره مې زما د کتبخانې د میرزاخان د دېوان له خطي نسخې څخه هم ځای ځای استفاده کړې ده.

د اروابناد استاد کامل مومندپه لاس (د خوشحال کلیات) ته مې تر دې ګړیه (د اپریل دریمه ۲۰۱۰ع) لاس نه رسېږي.

د میرزا حنان بارکزي او شمس الدین کاکړ د دېوانو له هغه چاپه مې کار اخیستی دئ، چې د صحاف نشراتي مؤسسې له خوا په ۱۳۸۸ش کال خپاره سوي دي.

زه دا اوسنۍ مقايسوي څېړنه په دې نيامت کوم، چې ګوندي د معياري پښتو د منځ ته راتګ په کار کې مې د څېړونکو او متخصصينو کار يو څه وراسانه کړی وي. د معياري کېدلو او معياري کولو کار په دفتر کې نه کېږي، چې څو تنه مامورين سره کښېني او د ژبې مقدرات پخپلو منځو کې سره فيصله کړي[۵].

د ژبې د معيار د ستري ودانۍ د جوړولو له پاره اومو موادو ته اړتيا سته. اومه مواد د ساحوي څېړنو او کتبي متونو د سپړلو له لارې تر لاسه کېدلای سي. زه پخپل دغه حاضر کتاب کې پر دغو مسئلو باندې، چې پورته مې اشاره ورته وکړه، رڼغېدلی يم. په دې بيان کې مې ګرامري جوړښتونه ډېر لږ څېړلي دي. زياته پاملرنه مې د لغاتو مقايسې ته اړولې ده. له ګرامري جوړښتو څخه د اجتناب دليل مې دا دئ، چې نه غواړم د ژبې د متخصص رول ولوبوم او هغه بيا په دې دليل نه غواړم چې زه د دغه راز تخصص له پاره نه رسمي جواز لرم او نه هم علمي صلاحيت و توان. مګر دا خبره په پوره ډاډ سره کولای سم چې څېړنه مې تر سر تېره کړې نه ده. د خپل صلاحيت په حدودو کې مې پر هره برخه باندې ښه پوره دقت کړی دئ. د مثالو ډېرښت به ئې ښايي پر لوستونکو باندې ستومانوونکی تمام سي خو ما په دې نيامت نه دي رااخيستي چې ليکنه بېځايه په وپړسوم. له امکانه ليرې نه ده، چې زما له دقت سره سره دې بيا هم تېروتلی يم. په هغه صورت کې د

---

[۵] په دې شپو و ورځو کې د پښتو د يوه مشر او درانه حقدار ليکوال له خولې په يوه انټرنيټي ويبپاڼه کې د "مونږ، موږ – ږغ، غږ – پزه، پوزه" په باب ځيني تبصرې خپرې سوي دي، چې د ډېري انديښنې وړ دي او ژيپوهنه ئې تر مضحکې سويې پورې راکښته کړې ده. دغه راز ليکني، هغه هم د حقدارو مشرانو استادانو په آدرس خپرول د دغو مشرانو په حق کې ظلم دئ. نه پوهېږم پښتانه ولې پخپل خيروشر نه پوهېږي؟

هر راز سالم انتقاد اورېدلو ته تيار يم. دم درحاله تاسي د کتاب
لوستلو ته رابولم او خبري به د ستر خوشحال په دې بيت پای ته
ورسوم:

خدايه! چاوته ئې کښنم، څوک به پرې پوه شي
ما ويلي هر يو بيت دی دفترونه

په درنښت

محمدمعصوم هوتک

اوکويل - کاناډا

# اول فصل

**۱ - خوشحال خان ختک او کورنۍ ئې:**

ارواښاد سید رسول رسا (۱۹۱۰ - ۱۹۹۰ع) پېښور د "پښتو شېراز" بللی دئ[۱]. له شېراز څخه ئې مراد د پارس هغه مشهور ښار دئ، چي د پارسي ژبي دوه مشهور نوابغ، شيخ مشرف الدين مصلح بن عبدالله سعدي شېرازي (۶۹۱ یا ۶۹۴ هـ ق مړ) او خواجه شمس الدين محمد حافظ شېرازي (۷۹۲ هـ ق مړ) ورته منسوب دي[۲].

خواجه حافظ شېرازي د دغه ښار د فضيلت او د هغه د اوسېدونکو د کمال په باب په خپله ويلي دي:

خوشا شيراز و وضع بيمثالش
خداوندا! نگه دار از زوالش
به شيراز آی و فيض روح قدسی
بجوی از مردم صاحب کمالش

---

[۱] د رحمان بابا دېوان ديباچه - ۳۴مخ، د ۱۹۷۶ع چاپ.

[۲] خوشحال خان د (شېرازي) په نامه د يو راز ښو خواړو يادونه لري:

شېرازي که ښه خوراک و، وار و ه تېر شه
ملوکي که ښه پوښاک و، وار وه تېر شه
(مرغلري - ۳۴۶مخ)

د خوشحال خان خټک کړوسی کامګار خټک چي کله د خپل پلرني ټاټوبي (سرای) پر توصیف باندي راسي نو ئې له (شېراز) او (خجند) سره پر تله کوي:

د کامګار د سرای پـه مثـل
نـه شېراز دی نـه خـجند [۳]

(دیوان – ۳۴مخ)

پېښور له شېراز سره پر تله کول یوه تعارفي خبره نه ده. د دغه ښار په لمن کي د پښتو ادب داسي ستر نخبه ګان زېږېدلي او لوی سوي دي، چي تر څو پښتو او پښتانه پر دې نابوده دنیا باندي ژوندي وي، د دوی په نامه به ویاړي [۴].

د پېښور د تاریخي سیمي ادبي اهمیت هغه وخت یو په سله سوی دئ، چي پر دغه مېنه باندي د یوه شعوري ادبي خوځښت تاداو کښېښوول سو او تر مراده ورسېد. دا زمانه د یوولسمي هجري قمري پېړۍ د منځ کلونه دي او دا بیا هغه وخت دئ، چي د سرای اکوړې د مشر تابه بګړۍ د ملک اکوړي د کړوسي، د یحیی خان د لمسي او د شهباز خان د زوی خوشحال خان خټک (۱۰۲۲-۱۱۰۰هـ ق) پر سر ایښوول سوې ده.

---

[۳] (خجند) د ماوراء النهر د مشهورو تاریخي ښارو څخه دئ، چي د سیحون رود پر غاړه پروت دئ. په پخوانیو کتابو کي خجند (د دنیا ناوې) بلل سوی دئ. دغه ښار اوس د تاجکستان د جمهوریت دوهم لوی ښار دئ. د شوروي واکمنۍ په دوران کي د دغه تاریخي ښار نوم په (لنین آباد) باندي واوښت (۱۹۳۹ع) خو د شوروي اتحاد تر ړنګېدو وروسته ئې بیرته خپل پخوانی نوم (خجند) راژوندی سو.

[۴] رحمان بابا (۱۱۲۸ هـ ق مړ) که د "ظالمانو حاکمانو" له اسیته دا ښار له (ګور) سره یو شان بللی دئ، خو دا غندنه د هغي ستاینې پله نه ورسپکوي چي د پېښور په باب کماحقه بیان سوي دي.

**دا ادبي خوځښت زه څکه شعوري حرکت بولم، چي تر يوه ټاکلي پروګرام لاندي ئې د يوه ټاکلي هدف له پاره هڅه راپيل کړې ده. په منظمه توګه ئې اشخاص روزلي دي، د ادب او شعر لارښووني ئې کړي دي، په پښتو ژبه ئې د آثارو د ژباړلو کار پر مخ وهلی دئ[۵]. د دې خوځښت باني، ستر خوشحال خان د پښتو ژبي خوار موقعيت درک کړی وواو په پوره برياليتوب سره ئې دا کاروان تر ډېري اندازې و منزل ته رسولی دئ. خوشحال خان له خپل دغه ادبي تلاښ څخه رضائيت په دې بيت کي ښه پوره ښوولی دئ، چي وايي:**

له خوشحال سره که کښېني يو څو کاله
دا د غـــره خټک به واړه شاعران شي

**دا خوځښت له پلاره زامنو ته او له هغو څخه لمسيانو ته راوغزېدی او په دې ډول ئې د پښتو ادبياتو د تاريخ يو پشپړ فصل جوړ کړ.**

***

**خوشحال خټک يو خانزاده پښتون وو. پلارونيکه ئې د خپل وخت ننګيالي و توريالي پښتانه مشران ول. دی وايي:**

راپاتې يو نه شـو دوولس مې ترونـه وو
ولاړل فــنا شــول چــه اولـــسونه وو
څه بادشاهان ولاړل، څه څه خانان ولاړل
چـــه په دربـــارئې ولاړ زرګـــونه وو
(رباعيات – ۳۴مخ)

---

[۵] د پښتو آثارو د ترجمې او خپروني کار تر خوشحال خان دمخه د روښاني خوځښت پيروانو او د هغو مخالفينو هم کړی دئ (قصيده برده، د مخزن نوري برخي) خو د هغه ډېره پاملرنه د مذهبي شخړو او تصوفي فرهنګ لور ته وه.

دغه وخت پر هندوستان باندي د مغولي شاهانو واکمني چلېده.
د ډهلي دربار که په اتنيکي لحاظ د مغولي تورکانو په لاس کي وو، خو
په فرهنگي لحاظ ئې تر پارس او ماوراء النهر وروسته د فارسي ژبي او
ادب يو بل پياوړی مرکز تشکيل کړی وو. له دغه سياسي او فرهنگي
مرکز سره د خوشحال خان د کورنۍ اړيکو د دغي کورنۍ غړو ته د
پارسي ادب د مطالعې پراخه زمينه برابره کړې وه او ستر خوشحال له
دغي زمينې څخه تر بل هر چا پراخه استفاده کړې وه. ده د پارسي
ادب کلاسيک آثار ليدلي ول او پخپل کلام کي ئې د دغو آثارو نومونه
پر دې خبره دلالت کوي، چي هغه ئې ټول لوستلي هم ول.

چه لاس مې نه رسی غليم مې يار دی
چه لاس مې ورسی غليم مې پلار دی
دا پند به نه مومی په شاهنامه کښې
په شاهنامه کښې که ډېر اسرار دی
(رباعيات – ۱۲۹مخ)

خوشحال خان خو لا ځان په فارسي شعر "طاق" بولي.

زه خوشحال پښتون چې په پښتو په پارسي طاق يم
لامې په پښتو ژبه کې ژبه درغلېږي[٦]

اشرف خان ويلي دي:

د پښتو ژبه مي ناوې کړه په نظم
د مغلو په شعر هم عالي مکان يم
(ديوان – ۱۰۱مخ)

---

[٦] خوشحال خان خټک په دستارنامه په يوه مخ کي(۱۲۶مخ) د مثنوي معنوي، سلسلة الذهب، نفحات الانس، معارج النّبوة، شاهنامه، سکندرنامه، ظفرنامه، اخلاق ناصري، گلستان، بوستان او نورو کتابو نومونه راوړي دي، چي په پارسي ژبه د ده د پراخي مطالعې ښکارندويي کوي.

یا:

هسې نه چې شعر کړم په خپله ژبه
تر پښتو مې د فارسۍ شعر والا دی

(۵۰۱- مخ)

خو دا چې ولي ئې پښتو شعر ته مخه کړې ده، داسي وايي:

د پښتو ژبې مې آب ورکه په شعر
د فارسۍ شعر چې نه وايم افغان يم

(۹۸- مخ)

د ډهلي له دربار سره روابطو پر ده باندي د کتاب پرېماني هم ميسره کړې وه. دی په دستارنامه کي د داسي کتابو حوالې ورکوي، چې د سرای اکوړې يوه اولسي خان ته ئې د هغه وخت په شرايطو کي تر لاسه کول له ناممکناتو څخه وه. دی په دستارنامه کي د چنگېزخان په ارتباط پر تاريخ روضة الصفا باندي حواله ورکوي. دا تاريخ خواندمير هروي (۹۰۳ يا۹۰۴ هـ ق مړ) د لسمي هجري پېړۍ په سر کي ليکلی دئ. تاريخ روضة الصفا خو به د هندوستان پايتخت ته رسېدلی وو، خو د روه د يوه پښتانه لاس ته رسېدل ئې که له ناممکناتو څخه نه وه نو ډېره مشکله خو هرومرو وه. دا د ډهلي د دربار له علمي و ثقافتي اشخاصو سره د اړېکو برکت وو، چې د خوشحال لاس يې د خپل وخت نادرو او مهمو کتابو ته رساوه. له دغي مساعدي زمينې څخه د ده پلارونيکه دومره استفاده نه وه کړې او هغوی له دې دونه قومي او اولسي دبدبې سره سره عالمان يا لږ تر لږه باسواده خلک نه ول. د خوشحال خان د پلار د بې سوادۍ شهادت خو پخپله خوشحال هم ورکړی دئ. دی د پلار د سخا او توري توصيف کوي خو بېسوادي

ئې نه پېژني:

پلار مې شهباز خان په سخاوت لکه حاتم وو
زړه ئې د مزري په توره تېر وو تر رستمه
تينګ ولاړ په شرعه تل ئې کار وو په رښتيا کښې
خط سواد ئې نه وو نور دانا وو له فهمه

(ارمغان – ۶۵ مخ)

له دې څخه څوک حدس وهلای سي، چې د خوشحال خان نيکه يحيى خان هم د سواد له خوا بابېز وو، ځکه باسواده پلار هرومرو پخپل زوی ليک لوست زده کوي.

د دې کورنۍ علمي و ادبي تاريخ له خوشحال خان ختک څخه راشروع کېږي او د علم او پوهي څراغ پکښې له خوشحال خان په هيسته بل سوی دئ خو د روښا اوازه ئې عين تر دکن و کندهار پوري لا هم رسېدلې وه. عبدالقادر خان ختک ويلي دي:

نوم ئې لاړ وو تر دکن تر قندهاره[7]
نه وو بل هسي نامي له زميندارَه

(۴۶۲– مخ)

خوشحال خان په دستارنامه کي شاه اويس صديقي ملتاني د خپل استاد په توګه راښيي او وايي چي "ډير بزرګ متبرک سړی وه – د علوم ظاهري او باطني بهره ور وه" (دستارنامه ۳۹ مخ). دغه راز ئې د شاه جهان د دربار له ستر عالم مولانا عبدالحکيم سيالکوټي سره د پيژندلو يادونه هم کړې ده، (دستارنامه ۷۰ مخ). د شاه اويس ملتاني د پيژندګلوۍ په باب مي څه ونه موندل خو

---

(۷) په چاپي متن کي "تر دکنه تر قندهاره"

مولاناعبدالحکیم سیالکوټي (۱۵۶۱ - ۱۶۵۶ع) د شاه جهان په دربار کي تر ټولو محترم عالم وو. وايي چي شاه جهان یو وار له سرو زرو او دوه واره له سپینو زرو سره تللی وو. نوموړی عالم د ۱۰۶۶ هـ ق کال د صفري پر څلېرویشتمه مړ سوی او د سیالکوټ په تاریخي ښار کي ښخ دئ[8]. د ده د قبر پر شاوخوا احاطه باندي اوس یو پارک سته چي د ده په نامه نومول سوی دئ[9].

خوشحال خان خټک له دغه ستر عالم څخه د باغي (یاغي) د مال د رواوالي او نارواتوب په باب او دغه راز د سعد و نحس "ساعت" په برخه کي پوښتني کړي وې.

خوشحال خان خټک د نابغه (Genius) شخصیت څښتن وو. پیاوړې حافظه ئې وه. ده دستارنامه د رڼتنبور په جېل کي په داسي حال کي کښلې ده، چي هیڅ راز ماخذ ته ئې لاس نه رسېدی او وایي، چي: "... کتابونه راڅخه نه وو او که نه ښې ټکی مي به په دا کتاب کړی وې. نظم نثر عربي، فارسی مي به په اشتهاد په کښې ډیر راوړي وو. اما په عندیات په حافظه خو به دا هونبره څه کېده..."، (دستارنامه - ۲۳۸، ۲۳۹مخونه).

خو د کتاب په دغسي نېستي کي ئې په دستارنامه کي تقریباً شپېته آیته، حدیثه، ادعیې، مقولې راوړي دي او د غزل، مثنوي، قطعې، رباعی، فرد او مصرع په چوکاټ ئې خپل و پردي فارسي و

---

[8] وگ : ویکیپیډیا – په تقویم تاریخي (مرتبه عبدالقدوس هاشمي ۲۶۷مخ کي د عبدالحکیم سیالکوټي وفات د اپریل ۲۵ مه ۱۶۵۶ ع کال د سه شنبې ورځ بللې ده. چي دغه نېټه د صفري له میاشتي سره سر نه خوري).

[9] د سیالکوټ تاریخي ښار د پاکستان د پنجاب ایالت په شمال ختیځ کي د چناب رود ته نږدې پروت دئ له لاهور څخه ئې واټن ۱۲۵ کیلو متره دئ (ویکیپیډیا).

پښتو دوه سوه اتيا بيته له حافظې څخه رانقل کړي دي.

خوشحال خان جهان ګښته سړی وو د پښتونخوا زياترو برخې ئې تر پښو کښلي وې او په هغو کې ئې د اولسو د ژوندوژواک، ژبې او کلتور په باب پراخ مشاهدات راغونډ کړي ول. د دې پر ښکلا يو با فرهنګه جنرال وو د جنګ و جګړو پر ميدانو يې ډېرې سړې و تودې ليدلې وې او هر څه ته ئې د يوه مدقق سړي په توګه کتلي ول او د دې ټولو پر ښکلا ښه ښکاري وو. ما ته د خپل ژوند تجربې راښوولې ده، چې ښکاريان په مختلفو سيمو کې د ګښت و ښکار کولو له اسيته له خورا ډېرو اولسي لغاتو، د ونو، بوټو، حيوانانو، مرغانو او نورو له نومو سره مخامخ سوي او هغه ئې په ياد کړي وي. دې کار د ده شعر ته د رنګينو لغاتو او وراشو د لارې موندلو زمينه برابره کړې ده.

د خوشحال خان تر وخت ښه ډېر کلونه پخوا د هندوستان نيمي وچې ته د اروپايانو تګ راتګ شروع سوی وو. د ده او د ده د زامنو له اشعارو څخه څرګندېږي، چې دوی له اروپايي کلچر او مصنوعاتو سره يو څه بلد سوي ول. خوشحال خان د پرتګالي شرابو يادونه کوي:

دوا ړه شونډي دي شراب پرتګالي دي
په سره والي له ياقوتو په سيالي دي
(کليات – ۳۸۵مخ)

عبدالقادر خان هم دې ته ورته مطلب لري:

ساقي مې بويه چې وي پرتګالي
خواه پياله وي مرصع خواه سفالي

**خوشحال خان په ښکار کي د "فرنگستان" له توپکو څخه کار اخیست او په دستارنامه (۵۵ مخ) کي لیکي: "د ټوپک ښکار له فرنگستانه اوس په دا آخر پیدا شه".**

د شطرنج، نرد، موسیقی، نقاشی په اصولو پوهېږي او په دې برخه کي ئې لیکني داسي ایسي لکه د یوه ماهر شطرنج باز، موسیقي پوه او نقاش له خوا چي لیکلي سوي وي.

دا ټول مطالب پر دې خبره باندي دلالت کوي، چي خوشحال او کورنۍ ئې مهذب، باسواد او مدني اشرافي خلک ول.

خوشحال خان د دیني علومو پراخه مطالعه درلوده خو متعصب او ړانده مذهبي افکار ئې نه درلودل، بلکي د ژوند په چارو کي دی او د کورنۍ زیاتره غړي ئې لیبرال کسان ول. زه نه غواړم چي له دوی څخه د نن زماني روښانفکران جوړ کړم لکه دا کار چي د ثور په اوله پاچاگښتي کي ځینو کسانو کاوه او له صوفي رحمان بابا څخه ئې د یوه بیت له اسیته "طبقاتي مبارز" جوړ کړ[۱۰]. موږ وینو چي د خوشحال کورنۍ کله چي د خانۍ منافع پر غالب سي، له خپل تنور سره سره بیا د محتسب او احتساب حمایه د "امراوو" وظیفه او د "غیرت" جزء بولي او هغه هم په دې دلیل چي گویا که دوی نه وي خلگ بې لاري کېږي (وگ : دستارنامه ۲۱۷مخ، د ۱۹۹۱ع چاپ، پېښور). مگر پخپل خصوصي ژوند کي بیا د اشرافي ژوند له غوښتنو سره سم مذهبي حدود ماتوي او "پر بکره باندي

---

[۱۰] هغه بیت دا وو :

نشي د خـــانانو او ملـــنگو سره کلي
چیرته عزیزخان چیرته ملنگ عبدالرحمان

لاس بزی" د "هغه جهان د سقر" په بیه رانیسي:

که دي لاس په بکره بر شي پرې ئې مهږده
که دي ځای شي په هغه جهان سقر
(ارمغان – ۵۷ مخ)

او اشرف خان د بیجاپور په بند کي په سپینه بږیره له نامحرمو ښځه د وصال غوښتنه کوي او کله چي د "رد" جواب اوري نو بیا خپل خبط و خطا د شعر په ویلو پاکوي ( وګ دیوان – ۵۵۳، ۵۵۴ مخونه).

د خوشحال خان د کورنۍ ژوند د "امراوو" په شان دئ د یوه عادي پښتانه خان ژوند ئې نه دئ. د خانۍ په ژوند کي زامن د پلار اطاعت پر ځان باندي لازم ګڼي خو د امراوو او سلطانانو دود و دستور بیا بل راز او د سیاست پر غوښتنو ولاړ دئ. د سلطنت او آمریت د بقا له پاره بیا پلار و زوی سره وژني. شاه جهان ته زوی د سر په کاسه کي اوبه ورکوي او د بهرام له لاسه خوشحال خان په غرو کي سرګردانه ګرځي. داسي معلومېږي چي نااهله بهرام دي دا وړ (میکروب) د هند له درباره ښځه اخیستی وي.

د خوشحال د شخصي و ټولنیزو ادبي ژوند په باب کتابونه بویه چي وکښل سي او کښل سوي هم دي. زما د همدې لیکني سره په ارتباط کي، فکر کوم، همدومره به بس وي.

***

**۲ – د خوشحال خان خټک او د هغه د کورنۍ ادبي ژبه:**

که څوک د خوشحال خان خټک د ادبي ژبي یا لهجې په باب پوښتنه کوي نو ساده او بسیط جواب ئې دا دئ چي خوشحال خان

په خټه خټک وو، په سرای اکوړه کې اوسېدی. د دې سیمې خټک چې اوس په کومه لهجه رږغېږي، د خوشحال ژبه هم دغه او لهجه ئې هم همدا وه. دا راز جواب په کلیاتو کې سم خېژي خو کله چې خبره د ژبې تحولاتو، انکشافاتو، جزئیاتو او بدلونو ته ورسېږي، هلته بیا دا راز استنباط د دغې مسئلې په واقعي پېژندنه کې مرسته نه کوي. او یا دا چې ځیني ما وارو! بیا کله چې د خوشحال خان په ژبه کې محوري فعلونه په شین سره ووینې، سمدلاسه حکم وکړي چې د ده ژبه د پښتو ختیځه لهجه وه. دا تحلیل تر ها بل څو چنده ساده او عامیانه دئ.

د خوشحال خان د ادبي او شعري ژبې په باب زموږ محققینو تر یوې اندازې پورې ور ته نظریې وړاندې کړې دي.

سید رسول رسا په ارمغان خوشحال (۱۲۰مخ) کې د خوشحال خان خټک د ژبې په باب لیکي، چې: "د خوشحال خان خټک د شعر ژبه، ساده خو الهامي او ادبي ژبه ده. عام ژبې ته نژدې، خو عام ژبه نه ده. د هغه په دیوان کښې د هرې طبقې او هرې قبیلې د مخصوصو الفاظو استعمال شوی دی او په دې وجه د هغه د شعر ژبه، عالمګیر وسعت لري. خو په حیثیت مجموعي په محاوره کښې د خټکو ژبه ده".

پوهاند دوکتور مجاوراحمد زیار صاحب هم دې ته ور ته نظر ورکړی دئ او لیکلي ئې دي: "خوشال په ټولیز ډول دا هڅه کړې ده، چې په خپله پښتو لیکلار او په ځانګړي توګه په شعر کې د خپل ټبرني (خټکي) ګړدود تر څنګه له نورو شاوخوا ګړدودو څخه هم کار واخلي، نه یوازې د وییپانګې، بلکې په رغاونیزه

(ګرامري او غږيزه) برخه کې هم. په دغه لړ کې ئې وينګ له اړوند ليکدود سره، هغه هم لږ و ډېر د ګرامر په بيه، دومره د شعري تول وتال، پښيلې او پايېلې (قافيې او رديف) لاستکوی کړی چې کله کله له لاسکښونکيو هم لار و لودن ورکوي، پاتې لا له ټوليزو لوستونکيو او اورېدونکيو څخه[۱۲]".

که په دغه رانقل سوي عبارت باندي زه سم پوه سوی يم نو د پوهاند صاحب مراد دا دئ، چي د خوشحال خان په شعري ژبه کی چي د نورو لهجو لغتونه او ګرامري سکښتونه راغلي دي، دا د خان ارادي هڅه وه او ارادتاً ئې د نورو لهجو لغات کار کړي دي او هدف به ئې غالباً د پښتو لغوي زېرمه خوندي کول وو او دوهمه خبره دا ده، چي د خوشحال خان د دېوان په خطي نسخو کي چي د ليکدود او تلفظ کوم توپيرونه ليدل کېږي، دا د کاتبانو لاسوهني نه دي، بلکي خوشحال خان پخپله د ژبي وينګ او ليکدود د شعر تر قافيې او رديفو دومره قربان کړی دئ چي له کاتبانو څخه ئې لار و ليکه ورکه کړې ده.

د دغو دواړو حکمونو په منلو کي زه (هوتک) ځان ته قناعت نه سم ورکولای. د خوشحال په ژبه کي چي د پښتو له نورو لهجو سره لغوي مشابهتونه په ستر ګه کېږي، سبب ئې دا نه دئ چي ګويا خوشحال د نورو لهجو لغتونه اورېدلي دي، هغه ئې خوښ سوي دي، نو ئې په شعر کي کار کړي دي. د دې لغتو ستهِ والی زما په فکر پر دې خبره دلالت کوي چي هغه وخت د پښتو لغوي زېرمه او ګرامري سکښتونه دومره سره ليري سوي نه ول، لکه دا نن چي ئې

[۱۲] وګ: د خوشحال د ... ۲ ۲۲ مخونه. دويم چاپ.

موږ په لیکنۍ پښتو کې وینو او لولو ئې. هغه وخت پښتو"بکره" وه او لاس نه وو په وهل سوی، ځکه ئې لغوي او ګرامري مشترکات پر ځای پاته ول. د ښاغلي ډاکټر عبدالرازق پالوال صاحب په عقیده خو"په ختیځي او لوېدیځی پښتیانا کښي لا تر ۱۲۰۰هـ پوري یوه لهجه ویله کېدله (معیاري پښتو- ۵۱ مخ). ډاکټر پالوال صاحب دغه لهجه د پښتو لومړنۍ لهجه بولي چي "دآمیبیانو، غرغوښتیانو، ابدالیانواو سړبنیانو ټبرونومشترکه لهجه وه". نن چي پښتو د سره لیري کېدو پر خوا روانه ده، لامل ئې د خواخوږۍ او دښمنۍ په نامه بېځایه لاسوهني دي. د دې حکم له منلو سره چي د کاتبانو د لاسوهنو پړه دي پر خوشحال خان یا کوم بل شاعر باندي واچول سي، زه جدي مشکلات لرم. د متونو د اړولو او مسخه کېدو جریان ما په یوه بل کتابګوټي کي څېړلی دئ. محترم لوستونکي دي د دغه کتابګوټي د خپرېدو تر وخته غاښ وچیچي.

دا خبره سهي ده، چي د خوشحال خان ختک شعري ژبه د دې سیمي د ختک قام ژبه وه خو د نژدې څلورو سوو کالو وړاندي ژبه. د دغي ژبي د پېژندلو له پاره موږ مجبور یو، لږ څه وړاندي ولاړ سو او د تاریخي و ژبنیو واقعیتو پر اساس باندي ئې ځان ته معلومه کړو، چي د خوشحال او کورنۍ ژبه د پښتو ژبي په اوسنیو لهجو کي له کومي یوې سره د مقایسې وړ ده.

### ۳. د لیکدود مسئله:

د ژبي پوهان او د دې سیمي د تاریخ څېړونکي او لرغونپوهان په دې عقیده دي چي تر میلاد زیات و کم پنځه سوه کاله وړاندي د پښتونخوا په ټوله پراخه اورشو کي خروښتي لیکدود باب وو.

علامه رشاد رحمة الله عليه د عکسي خيرالبيان د سريزي په سر کي ليکي:

"په پښتونخوا کي د آمو له غاړي رانيولې تر سيستان، کندهار، ږوب، کورمي، پېښور، ټېکسيلا، سوات، امب، باجوړ، هډه (ننگرهار) او وردگو پوري په هر ځای کي په دغه خروشتي ليک سره کښل سوي سکې، لوښي او کتيبې پيدا سوي دي[۱۳]".

خروشتي (خروښتي) هم د خلگو نوم وو، هم د ژبي او هم د ليک.

ډاکټر عبدالرازق پالوال ليکلي دي چی خروشتي ليک "...له پرثوي آرامايک سره کټ مټ ورته دئ، خو ږوغونه ئې ځله بيل دي. دغه مانا دا چي هغه يو توروئ په خروښتي کښي يو ږغ لري، او په پرثو آرامايک ليک کښي بل ږغ لري. په دغه ليک کښي د/ښ/ او/خ/ توپير سوئ دئ ... په خروښتي ليک کښي دواړه توري ستهٔ والئ لري. خروښتي په ختيځي او منځنۍ پښتونخوا کښي ستهٔ والئ لارء". له دې څخه ئې دا بله نتيجه هم رااېستلې ده، چي تر دوهمي هجري قمري پېړۍ وړاندي د هندوکش د جنوب اوسېدونکو ژبي د (ښ) او (ږ) دواړه آوازونه درلودل[۱۴].

د پښتونخوا د اوسېدونکو په ژبه کي د (ښ) او (ږ) د سته والي مستند ثبوت د لسمي هجري پېړۍ په ليکلو آثارو کي راپاته دئ. په دغو ليکلو آثارو کي د روښاني خوځښت د موسس بايزيد روښان (۹۲۵ – ۹۸۳ هـ ق) آثار او د هغه د مخالفانو د مشر اخوند درويزه ننگرهاري (۹۴۰ – ۱۰۴۸ هـ ق) آثار د زمانې له توپانو څخه

---

(۱۳) وگ : د خيرالبيان په سر کي د "خيرالبيان ليکدود" تر نامه لاندی : علامه رشاد مقاله، ۵۸ مخ.

(۱۴) وگ : معياري پښتو – تر ۵۸ مخ په هيسته، او د کابل چاپ خيرالبيـ[illegible] ۵۰، ۵۷، ۵۸ مخونه.

خوندي سوي او اوس زموږ په اختيار کي دي. د دغو دواړو تحريکو مشرانو د پښتو ژبي د الفبې نيمگړتيا درک کړې وه او د هغې له پاره ئې ځيني سمبولونه يا په ننني اصطلاح (گرافيمونه) غوره کړي ول. د روښانيانو په الفبې کي د دغه خوځښت د مبلغ شاعر دولت لواڼي له خولې د پښتو له پاره "ديارلس حرفونه" ټاکل سوي دي. دی وايي:

افغاني لفظ مشکل و، لوست کوپښ نه شه
ورته وشوه کننده ديارلس حرفونه

څېړونکي د (ديارلس حرفونه) په باب لږ څه مشکوک دي ځکه د پښتو الفبې د عربي او فارسي الفبې په مرسته جوړه سوې ده او په هغې کي تر عربي الفبې دوولس توري زيات دي نه "ديارلس". چي په هغو کي اته توري (ټ، ځ، څ، ډ، ړ، ږ، ښ، ڼ) د پښتو خپل توري دي، چي په عربي او فارسي الفبې کي نسته او څلور توري (پ، چ، ژ، گ) له فارسي سره مشترک دي، چي ټول دوولس کېږي. د روښاني تحريک په اساسي کتاب، خيرالبيان کي چي کوم توري کار سوي دي، په هغو کي، ويل کېږي، د گاف توری مکرر راغلی دئ. د پېښور چاپ خيرالبيان د عالمانه مقدمې ليکونکی حافظ محمد عبدالقدوس قاسمي وايي چي "گ، بايزيد دوه ځله ليکلی دی چه مونږ ئې په فرق پوهه نشو"[۱۵]. علامه پوهاند عبدالشکور رشاد (۱۳۰۰ - ۱۳۸۳هـ ش) د دغه مکرر گاف په باب کومي وروستۍ فيصلې ته نه دئ رسېدلی او د عکسي چاپ خيرالبيان په سر کي د خپلي ليکني په ۶۷ مخ کي تر يو لړ دلايلو

---

[۱۵] وگ: خيرالبيان – ۶۶ مخ، د پېښور چاپ.

وروسته ليکي: "تر څو چي د مکرر ګاف په باب کومه نوې څېړنه منځ ته راځي، زه د پورتنيو دليلونو له مخي د خيرالبيان الفبې ځلوېښت توري شمېرم او پر عربي الفبې باندي د دوولسو تورو زياتوب سم بولم".

ډاکټر عبدالرازق پالوال د خيرالبيان په الفبې کي د "ديارلسو تورو" د زياتوب د توجيه له پاره دليل موندلی دئ او وايي چي هلته ګاف مکرر نه دئ، بلکي "د بايزيد پير روښان د خيرالبيان په پيللوستي کښي پښتو/ګ/ دوه رازه کښه سوئ دئ. د يوء راز /ګ/ مرکس ته ئې کږئ ورکړې ده. دوهم راز ئې د/ګ/ مرکس ته د کږئ پر ځای باندي يوه کرښکه ورکړې ده، يا ئې تر /ک/ لاندی درې ټکي ايښي دي ...".

ډاکټر پالوال صاحب زياتوي: "دا په زغرده سره ويلای سم چي کږئ لرونکی /ګ/ يوه ستوی /ګ/ ؤ، او ټکيالي /ک/ يا کرښکن /ګ/ يا /ک/، غبرګ بږوغئ، تېښکيز /نګ/ ؤ...". ډاکټر پالوال د يوه ستوي ګاف په مثالو کي (ګنج، ګرګه، ګرګن، ګوګ، ګوګلی، ګلاګل، ګګيانی، بګی، بزګ...) او د تېښکيز غبرګ بږوغ په مثالو کي (جنګ، چنګاښ، شرنګ، ړنګ، ...، رنګارنګ، ترنګ او ترونګ، ...) راوړي دي[١٦].

د ډاکټر پالوال صاحب دغه نوې څېړنه د خيرالبيان په متن کي د دوو ګافونو د سته والي له پاره تر ټولوزياته موجه او د قناعت وړ څېړنه ده چي د دولت لواڼي د "ورته وشوه کننده ديارلس حرفونه" په باب خرخښه هم له منځه په وړله کېږي.

---

[١٦] معياري پښتو- ۶۳ مخ.

د خیرالبیان په الفبې کې د (ږ) له پاره ګرافیم داسې جوړ سوی دئ چې د دال په منځ کې ئې ټکی ایښی دئ او د (ښ) له پاره ئې د علامه رشاد او حافظ محمد عبدالقدوس هاشمي په قول همدا اوسنی شکل خو د ډاکټر پالوال په قول، تر سین لاندې ئې درې ټکي ایښي دي[۱۷].

ما (هوتک) د خیرالبیان په عکسي چاپ کې د علامه رشاد او حافظ محمد عبدالقدوس قاسمي د قول ملاتړ موندلی دئ.

زما د اوسنۍ لیکنې له پاره د مطلب ټکی دا دئ چې پیر روښان (ږ، ښ) جلا توري بولي او (ګ، خ) جلا توري.

د اخوند درویزه ننګرهاري له خوا د پښتو د دغو دوو آوازو (ږ، ښ) له پاره همدا اوسني شکلونه، چې موږ ئې کاروو، منلي دي. دی په مخزن الاسلام کې لیکي: "... گاهی زاء معجمه چون ثقیل شود سه نقطه بر فوق او داده (ژ) می شود و چون ثقیل تر شود یک نقطه بر فوق و یک نقطه در تحت ایزاد کرده (ږ) می شود و گاهی سین مهمله چون ثقیل شود یک نقطه بر فوق و یک نقطه در تحت آن نهاده (ښ) می شود"[۱۸]. ګویا اخوند درویزه هم (ږ، ښ) له (ګ،

---

[۱۷] وګ : معیاري پښتو – ۶۲، ۶۳ مخونه.

[۱۸] وګ : مخزن الاسلام د ۱۳۰۰ هـ ق (یکم ماه صفر) = ۱۸۸۲ع چاپ، دا چاپ له نن څخه یو سلو اته ویشت کاله وړاندې د دهلي ښار د یوسفي پریس په مطبع کې د پېښور د کتابو د تاجرانو دیوان ایشرسنګهـ اوچهجوسنګهـ په فرمایش چاپ سوی دئ، چې یوه نسخه ئې زما هوتک په کتب خانه کې خوندي ده. د دې چاپ پر څنډو باندې د حاجي بهادر صاحب کوهاټي تصنیف سوی اثر، مفتاح الدقایق لیکل سوی دئ. دا نسخه د کندهار د زړې جامع د امام اروابناد عبدالاحد اخندزاده "غریبک" د کتابتون وه، چې پر دریم مخ باندې د دغه اروابناد مهر هم سته او ما د کراچي ښار د کتابفروش مرحوم حاجي عبدالغني په کتابو کې وموندله.

## خ) څخه بېلول او دوه جلا توري ئې ګڼل.

د دغو دوو تحریکو په ادامه باندي په پښتونخوا کي د خوشحال خټک په لاس د یوه بل سیاسي نظامي او فرهنګي خوځښت تاداو کښېښوول سو. د دغه خوځښت په فرهنګي تګلاره کي د پښتو ژبي، چي د دوی په نظر تر دغه وخته پوري لا "بکره" پرته وه، د غنا له پاره منظمي هڅي د ټولو نورو کارو په سر کي راغلي وې. خوشحال خان هم د روښان پیر او اخوند درویزه په شان د پښتو الفبې د ایجاد اړتیا درک کړه او نوې الفبې ئې ترتیب کړه، چي د ده د زامنو، لمسیو او د ده د نورو پیروانو له خوا په لږ و ډېر توپیر سره پالل کېدله[19].

د ده له خوا په وضع سوې الفبې کي د (ږ) توري د ښوونې له پاره ئې تر (ژ) لاندي همزه او د (ښ) توري د ښوولو له پاره ئې تر شین لاندي همزه ایښووله[20].

که د روښان، اخوند درویزه او خوشحال خان په ژبه کي (ښ) د (خ) په شان او (ږ) د (ګاف) په شان تلفظ کېدلای نو دا دوه توري خو یو په عربي او بل فارسي الفباوو کي موجود ول او دوی هم پخپلو نوو ترتیب کړو الفباوو کي رااخیستي ول، نو بیا د نوو تورو د وضع کولو ضرورت څه وو؟ جواب ډېر ساده دئ او هغه دا چي د دغو درو سرو ذواتو په ژبه کي (ښ) د (خ) او (ږ) د (ګاف) په شان نه

---

(۱۹) د دغي کورنۍ یو غړی دوست محمد خټک پخپل یوه اثر بحرالعلوم کي د خوشحال خاني الفبې لیکلی دئ. د بحرالعلوم یوازنۍ نسخه د دوست (خټک) نوم په محمد خټک پخپل خط د افغانستان په ملي آرشیف کي په (۱۲/۲۲ محفظه) نومره خوندي ده.

(۲۰) [illegible] ټوک، تر ۱ مخ وړاندي پاڼه، ۱۳۵۹ش.

تلفظ کېدله. دغه دوه آوازونه ئې هغه راز وينگ ته ورته تلفظ کول، لکه اوس چې په لوېديځه لهجه کي تلفظ کېږي.

د دغه حکم بل ثبوت هغه بيتونه دي چې خوشحال خان خټک پکښې (ازمايښته، بهشته، زِشته، غوښته، نشته، کشته، خښته، خارښته، بالښته، رغښته، جوړښته) سره قافيه کړي دي.

زه به دا بشپړه غزله دلته رانقل کړم:

ځه به وايم د دې نفس له ازمايښته
چې ادم ئې را ايستلی له بهشته[۲۱]
چې په کې[۲۲] د دواړو کونو مراد مومي
هغه چار دې تر نظر لاندې کا زشته[۲۳]
د کېميا د بوټي گل کله مونده شي
چې د پښو تلې گلگون نه شي په غوښته
د سړيو په غفلت پوري حيران يم
چې په گور کې توري خاورې هومره نشته
بيا به څله څوک طلب د دنيا کاندي
چې ئې خلاص نه وي يو دم د کار له کشته
که تر سر لاندې بالښت کېږدي[۲۴] د پرونو
عاقبت به تر سر لاندې کاندې خښته

---

[۲۱] په (مرغلري) او (ارمغان خوشحال) کي دا نيم بيتی داسي دئ:
"نفس آدم دی را ايستلی له بهشته"

[۲۲] په (ارمغان خوشحال) او (مرغلري) کي "چي پکښې" دئ.

[۲۳] په کابل چاپ کليات (۱۹۶مخ) او نوي چاپ کليات کي "زښته" دئ. "زښته" دلته سمه معنا نه ورکوي زښته د (ډېر) معنا لري او (زشته) د (بد، خراب، ناوړه) معنا لري، چي دا دوهمه معنا له بيت سره سمه راځي. ما د ارمغان خوشحال او مرغلري ثبت واخيست.

[۲۴] په (ارمغان خوشحال) او (مرغلري) کي "کښېږدې" دئ.

د دنیـا میـنه پـ...

هیڅـو ک نـه ویـنم خـالي لـه دې خاربښته

د صـحرا پـه کـاڼي رخــه د شـیطان شـوه

عیسی سر پـه مځکه کښېښنه[۲۵] له بالښته

د زړه مـــینه پــه مثـال لکــه پټــک ده

چې د ګـوی څښتن وهلـه هورتـه رغښـته

غــم ئــې واړه د اشــنا د بیلتانـــه دی

د خوشـحال څـه سـریکار شـو لـه جوړښـته

(د خوشحال خان خټک کلیات – ۱۲۴مخ)

په دې پسي په یوه بله غزله کي (بالښته، خښته، زشته، خاربښته،
کښته، غوښته، پښته، رغښته، بهشته، ونغښته، رغښته، تښته).

که داسي وای چي خوشحال خان خټک ښین د (خ) په شکل تلفظ
کولای نو (نشته) او (خښته) به ئې هیڅکله نه وای سره قافیه کړې.

له دې ټولو خبرو څخه داسي نتیجه راوزي، چي د خوشحال
خان په ادبي ژبه کي د کلماتو تلفظ د لوېدیځي لهجې وینګ ته
نسبت تر نورو لهجو نږدې وو.

خوشحال خان خټک تر روښان او اخوند درویزه د ژبي د
الفبې په برخه کي هم دقیق وو او هم ئې په منظمه توګه تعقیب
کړې ده. ده پخپله ایجاد کړې الفبې کي د عربي خاص توري په
حساب کي نه راوستل. ده د پښتو الفبې دېرش توري بلله.

د "خوشحال ادبي پښتو" ښاغلي مؤلف د خوشحال خان خپله
الفبې دېرش توري بللې ده او د خپلي ادعا تاداو ئې د خوشحال

---

[۲۵] په ارمغان خوشحال کي "عیسی سر په مزمه کیښنو..." او مرغلري کي "عیسی سر

خان پر دغه بیت باندي درولی دئ:

عشق یو هسي یو دېرشم توری را زده کړ
چي په دېرش توري ښکوم د قلم کیلي[۲٦]

(د خوشحال ختټک مرغلري – ۵۱۰ مخ)

خو وروسته ئې په یوه احتمالي خبره چي "... ښايي موخه ئې د بیواکو نښې وي او په دې توګه تش یو توری زیات راځي" تر مطلب ګام اړولی دئ.

زما په ګومان دلته د خوشحال مطلب سم نه دئ درک سوی. د خوشحال پښتو الفبې پوره دېرش توري ده او دی په همدې دېرشو تورو قلم چلوي: (اب پ ت ټ ج چ ځ څ خ د ډ ر ړ ز ژ ږ س ش ښ غ ک ګ ل م ن ڼ و هـ ی). خالص عربي توري (ث ح ذ ص ض ط ظ ع ف ق) په حساب کي نه راولي. په تېر بیت کي د خوشحال مطلب دا دئ، چي د ده قلم د دېرشو تورو په مرسته چلېږي او همدا دېرش توري د ده د قلم چلولو محرکه قوه ده، خو پر دې محرکه قوې باندي یو بل قوت هم ورزیات سوی دئ، چي د ده قلم په چلېږي او هغه "عشق" دئ. ګویا "عشق" د ده د الفبې (د قلم چلولو د محرکه قوې) یو دېرشم توری دئ. او دا هغه محرکه قوت دئ چي د پښتو "غیب اللسان" رحمان بابا ئې په تعریف کي ویلي دي:

دا جهان دئ خدای له عشقه پیدا کړی
د هـــمه وو مخلـوقــاتو پـلار دئ دا

او د پارسي "لسان الغیب" حافظ شیرازي ئې په توصیف کي ویلي دي:

---

[۲٦] کیلي = لیکي، کرښي، خطونه.

طفیـل هــستی عــشقند آدمــی و پــری
ارادتــی بنمــا تــا ســـــعادتی ببــری

د خوشحال ژبه د خپل اولس ژبي ته نزدې ده خو د زامنو ژبه ئې د اشرافو ژبه ده. د خوشحال خان د زامنو ژبه یومخیزه د فارسي تر اغیزې لاندي سوې ده(۲۷).

د ژبي پوهان په دې پوهېږي، چي د علماوو ژبه، د ښاري خلکو ژبه، د کلیوالو ژبه، د نارینه وو ژبه، د ښځو ژبه، د کوچنیانو ژبه، د ټولني د بېلا بېلو طبقاتو ژبه یوه له بلي سره توپیر لري. دغه راز د اشرافو ژبه هم د اولس له عادی ژبي سره فرق لري. خوشحال او کورنۍ ئې په سرای اکوړه کي اوسېدل خو ژبه ئې له هغي کلیوالي ژبي سره فرق درلود، چي عادي خټک په رږغېدل.

له دې ټول بیان څخه مي مطلب دا دئ، چي د خوشحال خان د ژبي او لهجې د څېړلو پر وخت یوازي دا خبره کافي نه ده، چي دی خټک وو، په اکوړه کي اوسېدی نو ژبه ئې هم د نن ورځي خټکواله ژبه وه. د ده ژبه پر ننني معیارو باندي سنجول علمي غلطي ده. همدا سبب دئ چي ما پخپله حاضره څېړنه کي د ده د ژبي او د پښتو د لوېدیځي لهجې تر منځ مشابهتونه بیان کړي دي نور قضاوت مي نه دئ کړی.

---

(۲۷) د هجري ژوند د یوه اشرافي خانزاده په شان دئ. د شعر اصطلاحات ئې ټول درباري دي. اشرف خان زما په خیال که فارسي و عربي لغات پیدا نکړ، بیا نو پښتو لغت لیکي.

د عبدالقادر خان خټک ژبه هم له عربي و فارسي څخه متاثره ده او د ده په شعر کي بیا د اسلامي ثقافت خوا د خوشحال د نورو زامنو په پرتله غالبه ده او دې غلبې ئې هم د شعر ژبه یو څه ملایي کړې ده.

## ۴. د لهجې استازيتوب څوک کولای سي[۲۸]؟

انسانان چې پر يوه مېنه وزېږي د زېږېدلو له هماغي لومړۍ ورځي څخه د خپلي مور د ناز او ميني خبري او د خپلي شاوخوا نور ږغونه اوري او په مغز کي ئې ثبتوي. د ثبت تر دې عمليې وروسته چي بل هر وخت کوم آواز اوري، مغز ئې له هماغه ثبت سوي ليست سره ګوري او که له هر ثبت سوي ږغ سره دا نوی اورېدل سوی آواز موافق و، د هماغه آواز حکم پر کوي. که نوی اورېدل سوی آواز د مغز په ليست کي موجود نه وو، نو بيا مغز هغه ته د بل قريب المخرج آواز زيګنل ورکوي. دمثال په توګه هغه کوچنی چي د خپل چاپېريال په ژبه کي ئې د (ډ) آواز موجود نه وي او يوازي ئې دال اورېدلی وي، د ده د مغز په ليست کي هم (ډ) نه وي ثبت سوی. کله چي د پښتو (ډوډۍ) يا د انګرېزي ژبي (door) کلمه واوري د (ډ=d) آواز، د انسان مغز له خپل ثبت سوي ليست سره وګوري او طبيعي ده، چي نه سي ئې موندلای خو هغه ته يو بل قريب المخرج آواز په ليست کي موجود وي چي هغه (دال) دئ، ځکه نو د (ډوډۍ) وينګ د (دودۍ) په شکل اود (door) د تلفظ له پاره د (دور) حکم صادر کړي. د دغه ژبني قانون اغېزه ده چي فارسي ژبی اورېدونکی د پښتو ژبي (ډوډۍ) د (دودۍ) او د انګرېزي ژبي (door) د (دور) په شکل اوري. مګر دا کلمه که يو پښتون واوري، څرنګه چي د ده د مغز په ليست کي د (ډ) آواز له کوچنيوالي څخه ثبت سوی دئ، ده ته هيڅ نابلده نه ښکاري او په نتيجه کي د (door) کلمه هماغه شان

---

[۲۸] په دې برخه کي به زه د خپلي يوې پخوانۍ مقالې يوه برخه دلته رانقل کړم، چي د ۲۰۱۰ع کال د جنورۍ پر ۲۴ مه نېټه مي په بېنوا او نورو ويبپاڼو کي خپره کړې وه.

واوري لکه یو انګرېز چي ئې تلفظ کوي.

په انټرنیټ کي د یوې کلمې یا یوه نوم پلټنه هم کټ مټ د مغزي عملیې په شان وي. کله چي تاسي د یوې کلمې د سر دوه یا درې توري ټایپ کړي لا نه وي، بیا نوموړي کلمې ته د ورته تورو یو لیست د کمپیوټر پر پرده باندي درته راښکاره سي او تاسي ښایي خپل د غوښتني لغت یا کلمه پکښې ومومئ.

په مغز کي د ثبت سوو آوازونو لیست چي هر څومره اوږد وي، هغومره ئې د تلفظ ستونزه کمه وي.

د کوچني ژبه او لهجه له همدې ورځې څخه شکل نیسي او د ځوانۍ تر مرحلې پوري ئې لهجه پخېږي. دی که په هر لهجوي چاپېریال کي رالوی سوی وي، لهجه ئې هم د هماغه چاپېریال مسلطه لهجه وي.

که د کوچني د کورنۍ ژبه یا لهجه له دباندني ماحول سره یوه وه نو د کوچني ژبه یا لهجه هم کټ مټ د هغې سیمې لهجې ته ورته وده کوي خو که ئې بیا ژبه د کورنۍ ژبې یا لهجې او تر کورنۍ دباندي د شاوخوا ماحول ژبې یا لهجې یو له بلې سره توپیر درلود، د کوچني ژبه یا لهجه هم د کورنۍ او دباندني ماحول د ژبو یا لهجو دواړو اغېزې اخلي.

لهجې چي یو د بل په څنګ کي واقع سي یوه پر بلې اغېزه کوي. دغه راز که دبلي ژبې په شپول کي راسي هم بدلېږي. دا اغېزه او بدلون یوازي په لغاتو کي نه وي بلکي په وینګ او د جملو په جوړښت کي هم منځ ته راځي. زه په سر سره خپل ځان درښیم چي څو پرله پسې کلونه مي په داسي چاپېریال کي

کار کړی دئ، چي هلته زما د مورنۍ لهجې ویونکي یا نه ول او که ول هم، بیخي لږ ول. اوس چي خپلي پښتو لیکني ته ګورم، هغه راز پښتو نه پکښې وینم لکه پخپل محیط کي چي مي له مورو پلاره زده کړې وه.

کابلي سوي پښتانه پخپله ورځنۍ محاوره کي هغه جملې او ترکیبونه په پښتو راژباړي چي د کابل فارسي ژبي ئې پخپلو خبرو اترو کي کاروي. دا پښتانه خو خامخا یوې پښتني سیمي ته منسوب دي او دوی هم ځان د هغې سیمي بولي خو دغه ترکیبونه چي کابلي سوي پښتانه ئې استعمالوي، د دوی په مسقط الرأس کي څوک نه سي موندلای. دا څو مثاله به سره ولولو:

| فارسي | ناسمه پښتو | سمه پښتو |
|---|---|---|
| درخانه ما بچه شد | زموږ په کور کي زوی وسو | زموږ په کور کي زوی وزېږېد |
| برف افتید | واوره ولوېده وغورځېده | واوره واورېده |
| دلتنگ شدم | زړه مي په تنګ سو | خوابدی سوم، خپه سوم |
| در کار ته سه می نشینم | په دریمه کارته کي کښېنم | په دریمه کارته کي اوسم |
| مهمان آوردم | مېلمه مي راووړ | مېلمه مي راووست |
| گریه میکند | ژړا کوي | ژاړي |

نو اوس که څوک د دوی دغه ترکیبونه د هغوی په مورنۍ لهجه پوري وتړي، غټه ژبنۍ غلطي به ئې کړې وي.

څه موده مخکي مي یو کتاب کاته چي د لوېدیځي لهجې ویونکی ځوان ژباړلی دئ. په دغه کتاب کي د "رانیول = خریدن" فعل د "راونیول – ۹۰مخ" په شکل، او د"مندکي" پر ځای "مندتي" کار سوي دي، چي دا کلمات په هیڅ صورت د ده د مورنۍ لهجې نمایندګي نه سي کولای. دا کلمات ئې د ختیځي لهجې له ویونکو ملګرو څخه اخیستي دي. زه د دې اخیستني پر

ښه والي يا بدوالي خبري نه کوم بلکي مراد مي هغه اغېزې دي چي د لهجو ويونکي ئې يو پر بل باندي کوي[29].

د لوېديځي اوختيځي لهجې وېش بايد هيڅکله داسي تعبير نه سي چي په دغه لهجوي حوزو کي ټول پراته اولسونه په يوې داسي طريقې سره رږغېږي، چي د لغاتو تلفظ او د جملو سکښت او جوړښت ئې بالکل يو دئ. موږ د لوېديځي لهجې ويونکي د کندهار د ښار، د هغه د اطرافو، د هيلمند، روزګان، زابل، چمن، کوټې، ږوب، ښوراوک، ګرمسير، فراه او ... اوسېدونکي د هغوی د خبرو له مخي پېژندلای سو. په داسي حال کي چي دا ټولي سيمي په لهجوي لحاظ يوې حوزې ته منسوبي دي. دغه راز د ختيځی لهجې ويونکي پخپلو منځوکي د کونړ، لغمان، ننګرهار او پېښور اوسېدونکي د هغوی د لهجوي توپيرونو او د کلماتو د ادا کولو له مخي تشخيصولای سي. د پکتيا د پراخو اولسو تر منځ خو دا راز توپيرونه تر دا نورو لهجوي حوزو لا زيات اوراز – راز دي. د هري لهجوي حوزې اوسېدونکي هم پخپلو منځو کي د وينګ جزئي توپيرونه لري.

د لهجې استازيتوب هغه څوک کولای سي، چي د زېږېدلو له وخته څخه بيا د ژبي د پخېدلو تر زمانې پوري په هماغه ټاکلې ژبنۍ حوزه کي پاته سوی وي او تر هغه وروسته هم د زياتو پر له پسې کلونو له پاره له خپل مورني ټاټوبي څخه ليري اوسېدلی نه وي.

---

[29] کاظم خان شيدا د خوشحال خټک د کورنۍ غړی دئ، خو ژبه ئې د خپل مشر نيکه له ژبي سره له خپل وکور و کلي څخه د اوږده مهاجرت او د پارسي او هندي ژبو د اغېزې له اسيته توپير لري او په هيڅ ډول د خټکو د لهجې پوره نمايندګي نه کوي.

# دوهم فصل

کل عالم پخپله بخره هوسیږي
د هر چا تر فهمه خپل هنر کره دی
(میرزاخان انصاري)

## د خوشحال ژبه د لویدیځي ژبځانګي په ترازو کي

### ۱،۲ – د کندهار او پښور تاریخي اړیکي:

په دې څېړنه زما مراد له کندهار څخه همدا اوسنی ښار او ولایت نه دئ. د کندهار تاریخي حدود تر دې ډېر پراخ دي. د روښانیانو د وخت کندهار د کاسیانو او شینوارو د اوسېدني له مېني څخه شروع کېدی. د کاسیانو او شینوارو (شېراڼیو؟) ټاټوبی د ننني بلوچستان د کوټې ښار ټول اطراف دي. دا سیمه د مغولي شاهانو له خوا اداره کېدله. د میرویس نیکه د زوی شاه حسین هوتک (۱۱۱۴ هـ ق زوکړی) په وخت کي دا سیمه له مغولو څخه ونیول سوه.

د خوشحال خان په وخت کي هم د کندهار حدود له همدې برخي پیل کېدل. دی یو ځای وایي:

د مغلو سره ګډ په زیست روزګار کښي
غوریه خېل دي یا ترین د قندهار
(مرغلري – ۱۰۲۱مخ)

د ترینانو سیمه د اوسني کوټې، شال او پښین حدود دي.

خوشحال دا سیمه د "قندهار" په نامه بللې ده. د خوشحال خان په وخت کې به دا سیمه د مغولي او پارسي پاچهیو تر منځ لاس پر لاس کېدله.

د میرویس نیکه د فرهنګپال زوی شاه حسین هوتک په وخت کې پېښور ته د یوه فرهنګي مرکز په ستر ګه ګتل کېده. څرنګه چې دغه فرهنګپال پاچا، د پټې خزانې په روایت، په کندهار کې هم د دغه ښار د فرهنګپالو په مرسته د پښتو ژبې او پښتنو شاعرانو یو مرکز جوړ کړی وو، نو ئې د پښتونخوا له ګوټ ګوټ څخه د پښتو آثارو د راغونډولو کار ته پاملرنه کوله او په دې لړ کې به له کندهاره پېښور ته د پښتو آثارو د رانقلولو له پاره کاتبان لېږل کېدل[1].

وایي چې لوی احمدشاه بابا د څمکنو د میاعمر رحمة الله علیه لاسنیوی کړی وو. زما استاد علامه رشاد رحمة الله علیه کښلي دي: "د حضرت میا عمر رحمة الله علیه د ملایي او بزرګۍ بږغ کندهار ته هم رسېدلی و، د کندهار نامتو عالم ملا شاهو اخوند ساګزی هوتک، چې په ارادت سره مشهور و، د ده خلیفه و. زه باور لرم چې لوی احمدشاه بابا (۱۱۶۰ – ۱۱۸۶ه ق) ته به هم تر پاچا کېدلو دمخه د ده د ښه سړیتوب آوازه رسېدلې وه...

لوی احمدشاه بابا که له یوې خوا بزرګانو ته ارادت او ملایانو ته احترام درلود، له بلې خوا ئې د خپلې پاچهۍ ستنې هم په دوی ټینګولې. د۱۱۶۰ ه ق کال د میانۍ په میاشت کې چې لوی احمدشاه بابا له خپله لښکره تر خیبر واوښت او پېښور ئې له ناصرخان زیګ (د ډهلي د دربار والي) څخه ونیو، له میا

---

[1] پټه خزانه – ۹۳ مخ، د ۱۳۲۳ ش چاپ

صاحب رحمة الله علیه شخه د دعا اخیستلو له پاره ښمکنو ته ورغی د ځینو په قول مرید ئې سو او د لنګر له پاره ئې په وارو وارو ډېري سر کاري مځکي وروبخښلې..."(۲).

د خټکو کورنۍ کندهار ته په درنه سترګه کتله. کله چي پر کندهار باندي د پارس له لوري شخه د علیمردان خان په مشرۍ لښکري راځي، خوشحال خان خټک خپله ناراضي داسي ښکاره کوي:

هندوستان به ګوره څه شي ستا له فعله
خدای دي ورک کړه رافضي علیمردانه
له هغې ورځې چې راغلې په دا ملک کښې
غم دي راوړ تر سپاهه تر دهقانه
چې دا هسې شوم قدم دي په ملک ګډ کړ
چې دي ګورم څه ناپوه ئې شاه جهانه

(ارمغان – ۲۹مخ)

دا واقعه د هغي اسماني بخولي (وبا) سره یو ځای بیانوي، چي د زرونو انسانانو سرونه ئې وخوړل.

خوشحال خان د کندهار مېرمني "نیکفرجامي" بللې:

کشمیر فرخار کابل قندهار څو چي خراسان دي
په دا کښې نیک فرجامې ډېري ډېري موندې کېږي

(ارمغان – ۹۱مخ)

او د کندهار ښایسته وو ته د کشمیر دا (بنده = مریي) کوي:

ښایسته د کندهار د چا په یاد دي
په دا حسن ئې بنده واړه کشمیر کړ

(۷۶– مخ)

---

(۲) پوهاند رشاد، د ښمکنو میا عمر رحمة الله علیه، ۲۲ – ۲۳ مخونه.

افضل خان ختک په کندهار کي د میرویس نیکه په زعامت سره خوښي او خوشالي کوي. ده په تاریخ مرصع کي د "ذکر میرویس غلجي" تر سرلیک لاندي مفصل بیان کړی دئ او په پای کي ئې کښلي دي "... تر دا تاریخ چي سن زر څلوېښت دی، په قندهار ناست خپل حکومت او سرداري کا توفیق ئې رفیق شه ښه پښتون دی"[۳].

د ختکو د کورنۍ او نورو پښتنو مرورو به کندهار ته ځکه مخ نیوی چي دلته ئې هم عزت کېدی او هم ئې حرمت ساتل کېدی. په دوی کي د بحرالعلوم او اخلاق احمدي مؤلف دوست محمدختک راتګ کندهار ته د یادوني وړ دئ. دوست محمد ختک د محمداکرم خان زوی د کرم خان لمسی او د زمان خان کړوسی وو. دغه زمان خان بیا د زرنام خان زوی د پاینده محمد خان لمسی د عبدالقادرخان ختک کړوسی او د خوشحال خان کوسی وو. دوست محمد ختک د امیر شېرعلیخان د پاچهۍ په دوهمه دوره کي د ځینو کورنیو خوابدیو له امله کندهار ته راکډه سوی وو او د کندهار خلکو ورته د یوه خانزاده مېلمه په سترګه کتلي او د ارغنداب د رود پر غاړه ئې د محتشم په کلي د استوګي له پاره مځکه ورکړې وه[۴].

د میانعیم متي زي کورنۍ هم له پېښور څخه کندهار ته مهاجره

---

[۳] تاریخ مرصع: ۴۴۵ مخ، د ۲۰۰۶ع می چاپ، پېښور. د تاریخ مرصع دغه برخه علامه پوهاند عبدالحي حبیبي د تاریخ مرصع تر چاپ شپږ کاله وړاندي په وږمه مجله – ۱۳۴۷ش کي خپره کړې وه.

[۴] وګ: بحرالعلوم، سریزه (و) مخ، د لیکونکي په زیار.

سوې ده او په ناکودک کلي کې ئې اړولي دي. دا کورنۍ د کلات د شیخ متي بابا له اولادې څخه ده خو د پېښور په خلیلو کې زېږېدلی دئ[۵].

د خوشحال په کورنۍ کې یوازنی سړی چې "کندهاري" ئې کړلي دي، هغه اشرف خان هجري دئ. دی وایي:

نوم د وفا شته اثر ئې نه وینم په دور
خلق د جهان دي همه تګ قندهاري
(وګ : ۵۵۰مخ)

ما ته د دې کړني انګېزه نه رامعلومېږي.

## ۲، ۲ – د ګرامري سکښت او جوړښت مشترکات:

لهجوي توپیرونه یوازي د لغتو او کلماتو په وینګ پوري محدود نه پاته کېږي، بلکي هره لهجه ځیني ځانګړي ګرامري سکښتونه او جوړښتونه هم لري. د همدغو ګرامري سکښتو له توحید څخه د ژبي عمومي ګرامر تهیه کېږي. لهجوي سکښتونه لکه د ژبي لغتونه، زېږي، وده کوي او مري لا هم.

زه به په دې راتلونکو کرښو کې هغه ګرامري سکښتونه بیان کړم چې د لوېدیځي لهجې او د کلاسیک ادب تر منځ سره مشترک دي. لکه مخکي چې مي هم یادونه وکړه له لیکني متن څخه دا خبره معلومول سخته ده، چې دغه سکښتونه به د شاعر یا لیکوال له خپل کښنګ سره سم کټ مټ رانقل سوي وي که یا؟

---

[۵] د تفصیل له پاره وګورئ: پښتانه شعراء، دوهم ټوک، ۴۱۹مخ. د میانعیم دېوان د خیال بخاري په دیباچه، ترتیب او تدوین سره د پېښور یونیورسیټی پښتو اکیډیمی له خوا په ۱۹۶۴ع کال چاپ سوی دئ. "پېژندګلو" ئې مولانا عبدالقادر لیکلې ده.

## ۲،۲،۱ - اسان، اسونه:

آس مذکر نوم دئ. په پښتو کي د مذکرو نومو د جمع لاحقه (ان، ونه) ده. آس - اسونه، لاس - لاسونه، اوښ - اوښان، چرګ - چرګان. د کندهار په لهجه کي د آس جمع (اسان) ده. خوشحال خان د "اسان" او "اسونه" دواړه راوړي دي.

خدای چي ښه کړي په دا جهان دي
که پړي پو هېږې انسان، **اسان** دي
چي سره یو شي دا دواړه توکه
مشکل کارونه ورته اسان دي
(رباعیات - ۱۸۴مخ)

یا:

اسپې **اسونو** ته ساتلی شي
ټټوئې خرونو سره شړلی شي
ټټوان یا خرونه باندي ختنه کا
ځینې نابودې ګلې حاصلې شي
(د خوشال خان خټک کلیات - ۴۵۵ مخ)

***

## ۲،۲،۲: و - ونو (مغیره جمع):

د پښتو په زیاترو لهجو کي د مفرد مذکر نومو مغیره جمع په (ونو) سره کېږي، لکه: کتابونو، لاسونو، ځنګلونو او نور. د کندهار په لهجه کي ئې د "کتابو"، لاسو، ځنګلو ..." شکل کارېږي. د خوشحال خان خټک او نورو کلاسیکو شاعرانو کلام هم دغه راز ترکیبونه لري.

***

**لاس، لاسو:**

بند په بند د **لاسو** گوتې وبله کښېږدي[٦]
سر ترپايه درست صورت سره يو راز کا
(مرغلري – ۲ مخ)

***

**زړه، زړو:**



**خوشحال وايي:**

يو بخرى درومي، واړه ښهر سرې لمبې کا
مه گوره ښه مخ تـه **زړو** ته غم راوړي بصر
(۶۰ – مخ)

**دا بيت له هغي نسخې څخه رانقل سوى دئ، چي د خوشحال خان په ژوند كي ليكل سوې ده.**

***

**څني، څنو:**

**خوشحال ختک ويلي دي:**

بيا له کـومه لـوريه بوى راځي د **څنو**
چې خاطر مې په هاى هوى راغى د **څنو**
(۱۶۹ – مخ)

**(څنو) ته ئې په حاشيه كي زياته كړې ده چي "د كامل په دواړو چاپونو او كندهار چاپ كي (څونيو)..." راغلى دئ خو په دريمه خطي نسخه كي "... (څينو) راغلى دى". د خوشحال خپل تلفظ ئې (څنو، څينو) دئ او د پښتو د لوېديځي لهجې تلفظ ئې هم**

---

[٦] په كابل چاپ كليات، نوي چاپ كليات كي "كېږدي" دئ خو په ارمغان خوشحال (۳۱۰ مخ) كي بيا "كښېږدي" راغلى دئ.

په همدې راز دئ.
په (۴۱۷مخ) کې ئې په متن کې "څنهيو" ليکلى دئ خو په
لمنليک کې ورته کښلي دي چې "په کندهار چاپ کې (څونو) او
په نورو کې (څنهو) دى" له دې حاشيې څخه څوک ويلاى سي چې
د (څنهو) شکل ئې تر (څنهيو) عام استعمال لري. بيت داسي دئ:

په هر چين کې ئې د **څنهيو** مښک چين دي
لخلخې ځنې تويېږي چې په لار ځي
(۴۱۷- مخ)

رحمان باباوايي:

رحمان ستا په مخ بې **څنهو** هم مين دى
بېهوده دي ورته کېښو دام په څه
(۱۳۳- مخ)

***

مېر، مېرو:
د کندهار په لهجه کي د (مېر) مغيره جمع (مېرو) ده په نورو
لهجو کي (مېريو) ويل کېږي. په خوشحال خاني ادبياتو کي هم زه
د (مېرو) له شکل سره ډېر مخامخ سوى يم.
د خوشحال خان زوى اشرف هجري وايي:

په مسند ئې هسې غوره نمسي ناست دي
چې ئې فخر که په **مېرو** باندي نيکونه
(ديوان - ۱۷۵مخ)

***

وار، وارو:
د خوشحال په بل اثر فراقنامه کي د "وار" جمع د لوېديځي

لهجې په شان "وارو" راغلې ده نه "وارونو".

زما فکر ستا **وارو** ته
ته تيار د ما خاروته
(٦١ - مخ)

د دوهم نيم بيتي "د ما" زما په نظر د خوشحال خان له خوا کار سوی لغت نه دئ. د نسخې د کاتب اراده پکښې ډېره دخيله معلومېږي. خوشحال خان هر وخت د (زما، ستا) ضميرونه کاروي. د ختېکو په لهجه کي د "دِما" ضمير رواجېدل تر خوشحال خاني عصر وروسته انکشاف دئ.

***

لېوني، لېونو:

رحمان بابا هم د "ليونيو" پر ځای "ليونو" کاروي او داسي ښکاري، چي دا قاعده يوازي د ختېکو په لهجه پوري منحصره نه وه او د دغي سيمي پراخو اوسېدونکو اولسو کاروله. د رحمان بابا د کلام مثال ئې دا دئ:

ليو نتوب له **ليونو** نه تلوني نه دي
که ئې راج په خونه ورشي که تاراج
(٢٨ - مخ)

***

ژوندی، ژوندو:

حميد مومند هم د (لېوني) مغيره جمع (لېونو) راوړې ده، نه (لېونيو). ده ويلي دي:

وې ئې څه له گذشته وو شر و شور کړئ
د **ژوندو** ترانه واورئ مړه درگور کړئ
(کليات - ٣٤٨مخ)

دا قاعده د کندهار په لهجه کي زيات عموميت لري او موږ ئې
د حاجي ولي محمد مخلص کندهاري په کلام کي ګورو، چي د
(موټر) مغيره جمع (موټرو) ليکي. دی وايي:

نن خاوند ئې د ماڼۍ او د **موټرو**
چي عالم دئ ستا د درب په ننداړو
درپو هيږو ځان به نه اچوې پلن
چي له بدو دي مين دلي په زړو
(دلوی مخلص کليات –۱۹۹ مخ)

مولوي بريالی هم د (سړي) مغيره جمع (سړو) ليکي نه
(سړيو).

ته هم ما رنګ يو سړی ئې له **سړو** څه
کميني درڅخه صرف کئ پشمي کوټ
(اهار – ۱۷مخ)

پوهاند دوکتور زيار صاحب د دغه راز مغيره واو د کارولو په
وخت کي له واو سره د (ی) نښلول لازمي بولي خو وروسته زياتوي،
چي "که د ګډون ويره نه وي او رواني پېښوي، نو د (ی) غورځول
دومره نادوده نه بريښي، په تېره بيا په شعر او وينا کي".
(ليکلارښود –۵۱ مخ).

***

### ۳،۲،۲: واو – سربل:

په پښتو کلاسيک ادب کي د (و) سربل ډېر لرغونی دئ او
زيات په سترګه کېږي. لکه و کابل ته، و بل چا ته، و اسمان ته، ...
د منځنۍ دورې شاعرانو هم پاللی دئ. دغه د جهت ښوولو (و) په
انګرېزي ژبه کي د (to) معادل دئ. د کندهار لهجې دغه ځانګړتيا

خوندي کړې ده او نورو لهجو له لاسه ورکړې ده. اوس د پښتنو لیکوالو عمومي تمایل هم د دغه راز (و) د نه کارولو و خوا ته زیات دئ.

خوشحال خان دغه ګرامري ځانګړتیا پاللې ده.

و نور چا وته به څه لره څه وایې[7]
و خپل ځان وته خوشحال خټک دا پند کا
(۴ – مخ)

یا:

چې دنیا ورته ښکاره شوه بې وفا
و دنیا ته به مخ نه کا بې قفا
(۹ – مخ)
دا بې درد عالم پرې هیڅوک خبر نه شو
و خوشحال ته ئې خوله ورکړه په اخفا
(۱۰ – مخ)

یا:

اول ښه شهر پیدا د الوتو کړه
بیا له پسه الوا ته کړه و اسمان ته
(۲۰۱ – مخ)

د هغه غزل، چې دا بیت ورڅخه رانقل سوی دئ، نوري قافیې (وجهان ته، و درمان ته، و ایمان ته، و مهمان ته، و باران ته، و پان ته) دي.

یا: د رحمان بابا (۱۱۲۸ هـ ق مړ) په کلام کي هم دغه راز ترکیبونه سته. دی وایي:

---

[7] په ارمغان خوشحال (۳۱۱ مخ) کي دا نیم بیتی داسي دئ:
"و نور چا وته به څه وته څه وایې"

هر چي اچوي و اور ته واړه سوزي
مور به نه شي طلبګار د دې دنیا
(دیوان، د سید رسول رسا په تصحیح، ۴ مخ)

یا:

بت خانې و ته ئې مخ وي
و مسجد و ته ئې شا
(۱۲– مخ)

عبدالقادر خان وايي:

نصیحت و لیوني ته لیونتوب دی
که پاخه وايي اومه وايي واعظ
(۷۲– مخ)

هیڅ له کبره نظر نه کاندي و خوار ته
ښایسته په معنی زر دروم ي زردار ته
(۱۶۰ – مخ)

مولوي بریالی وايي:

هدایت و نا اهلانو ته عبث
لارښوونه و ړندیانو ته عبث
(اهار – ۱۹ مخ)

***

**۲،۲، ۴: د عدد او معدود رابطه:**

دا رابطه د پښتو په ټولو لهجو کي یو شان نه ده او لږ څه توپیر لري. د کندهار په لهجه کي چي کله د جمع مونث کلمې له پاره د (دوه) عدد کارېږي، خپل شکل اړوي او د معدود سره د مطابقت په حکم (دوې) ځني جوړېږي. لکه: دوې سترګي، دوې نجوني، ... د پښتو په نورو لهجو کي دغه راز موارد د "دوه سترګې، دوه

نجوني، ..." په ډول ویل کېږي. د خوشحال خان په کلام کې د لوېدیځی لهجې دغه ځانګړتیا موندله کېږي.

زما **دوې** سترګې و لارې ته څلورشوې
که ښکاره د یار له لوري په خدای رسول کا

(۴ - مخ)

په کلیات خوشحال ختټک کې ئې کښلي دي چې په "ارمغان" کي (دوه) سترګې ثبت دي. د نورو بدیلونه راوړل ئې پر دې خبره باندي دلیل کېدلای سي چې ګویا په هغو کې هم (دوې) سترګې دي.

یا:

**دوې** دې تورې سترګې لکه دوې تورې بلا
**دوې** دې تورې وروځې لکه دوې تورې ترملا

دا بیت د کلیات د مرتب له خولې په لومړۍ خطي نسخه کې په همدې شکل دئ خو په دوهمه او دریمه کې د (دوې) پر ځای (دوه) راغلی دئ.

یا:

په سپین جمال چې تار په تار **دوې** زلفې عنبر فام کا
محبوب به غواړي دا چې رڼا ورځ په عاشق شام کا

(۲۹- مخ)

یو ځای ئې د حضرت علي کرم الله وجهه په وصف کې ویلي دي:

ذوالفقار ئې اژدها و **دوې** ئې ژبې
چې د دین مخالفان ئې وو خوراک

(۱۰۳- مخ)

بل ځای:

چې په هره میاشت کې **دوې** ورځې دي نحسي
هم دغه دي چې حساب و شو خوبک
(۱۰۴- مخ)

یا:

ځینې یوه کا ځینې **دوې** درې کا
په انځورونو کښېدې سرې کا
د دنیا خلک یاري یاري کړي
چې سود ئې نه وي یاري ئې پرې کا
(رباعیات – ۵ مخ)

حمید مومند ویلي دي:

په ژړا کې دي **دوې** سترگې
دوه رودونه کا ذاهب
(کلیات – ۳۹مخ)

په "در او مرجان" (۱۳مخ)، د عبدالحمید دیوان (۴۲ مخ) کي د (دوې سترگې) پر ځای (دواړه سترگې) او د عبدالحمید مومند دېوان (۴۸مخ) کي بیا (دوې سترگې) ثبت دي. دلته ما ته نه معلومېږي چې دغه "دوې" به د کلیات د ترتیبونکي اراده وي او که د حمید خپل وینگ.

میرزا خان انصاري ویلي دي:

دین دنیا دي په مثال سره **دوې** خویندي
چې یوه ئې په عقد کښې بله طلاقه
(۱۶۱- مخ)

یا:

**دوې** ورونځې تکي توري
پرې دپاسه وسمه کړي
(۱۷۵- مخ)

**یا:**

د مشـرک آیینه یوه، مـخـونه دوه شـوه
د عارف سترگې هم **دوې** نه دي دوبیني
(۲۴۵ - مخ)

**میرزا حنان بارکزي ویلي دي:**

پـه کثـرت د اسباب نـه شي مطلـبونه
پـه دوو ژبـو **دوې** خبـري نـه کـړي مـار
(۵۸ - مخ)

هغه غزل چي دا بیت پکښې راغلی دئ، د کوټې بلوچستان په چاپ کي نسته. د دغه چاپ په ۲۶۶ مخ کي د ارواښاد سعید گوهر په قلم د هغو غزلو یادونه سوې ده، چي زما (هوتک) په واسطه د ترتیب سوي دېوان په لومړي چاپ کي نه دي راغلي خو د دې خبري یادونه ځني پاته سوې ده چي دا غزله بیا د دوی له خوا په ترتیب سوي دېوان کي نسته. د کابل د پښتو ټولني چاپ بیا دا غزل لري، خو دغه بیت پکښې نسته. زما (هوتک) په لاس د ترتیب سوي دېوان په دواړو چاپو کي دا غزل خوندي ده.

پوهاند زیار صاحب هم په لیکلارښود (۲۳۳مخ) کي "دوې ښځې" کره او "دوه ښځې" ناکره بللي دي. د کابل پر مطبوعاتو باندي واکمن د پوهاند صاحب دغه لارښوونه نه پالي او پر خپل سر ئې ډنگوي او دی هم دا سرغړونه جدي نه نیسي!

د خوشحال خان په کلیات کي د عدد په ارتباط پر یوه بله قاعده هم پېښېږو او هغه داسي ده: په لوېدیځه لهجه کي د نورو لهجو پر خلاف (دوه اویا) د (دواویا) په شکل ویل کېږي. د

خوشحال د دېوان په قلمي نسخو کي هم (دواويا) ليکل سوی دئ، خو د چاپي متن ترتيبوونکو له هغه څخه (دوه اويا) جوړ کړی، مګر کور ئې ودان چي د قلمي نسخو د ثبت (دواويا) خبره ئې په حاشيه کي پټه کړې نه ده. بيت دا دئ:

يو ئې اصل سره، **دوه اويا** مذهبه
خدايه څه بني ادم فريق شو
(۱۸۷- مخ)

يا:

چي مې وليدې څو خولې، همره خبرې
راځر ګند شول واړه **دوه اويا** ګروهه
(۲۸۰- مخ)

په قلمي نسخو (دريمه او څلورمه) دا عدد بيا د (دواويا) په شکل ثبت دئ.

رحمان بابا د "دوه دېرش" پر ځای "دودېرش" کاروي:

زړه مي تراشي د بڼو په تېره نوک
ماتوي مي **دودېرش** غابښ واړه په سوک
(۶۷- مخ)

د عبدالقادرخان خټک په دې لاندي بيت کي چي د "دوشپېته" پر ځای "دوه شپېته" راغلی دئ، د مرتب ناسمه لوستنه بايد وګڼل سي.

**دوه شپېته** کاله دې ولاړ عمر په لهو
عبادت دې په عادت نيکي په سهو
(۴۹۲- مخ)

پوهاند زيار صاحب ليکي، چي د خوشحال خان په کلام کي

"اووه" هم له کندهارۍ لهجې سره سم دوې څپې کښل سوي دي (د خوشحال ادبي پښتو ۳۷ مخ) تر کمه ځایه چي ما ته معلومه ده، په ختیځه لهجه کي "اووه ویشت" عدد د" وه ویشت" په شکل تلفظ کېږي.

دغه راز په ارمغان خوشحال (۳مخ) کي "څلیریشت" د کندهارۍ لهجې "څلیرویشت" ته ییخي نږدې دئ:

یو لک **څلیریشت** زره کم و زیات پیغمبران دي
کل واړه مدام دي ثناخوان د محمّد ﷺ

***

**۲،۲،۵: ښځینه (تأنیثه) هې او د هغې د جمع قاعده:**

په کلاسیک ادب او لوېدیځه لهجه کي هغه ښځینه کلمې چي فشار ئې پر وروستۍ څپه وي، په اوږده (ې) سره جمع کېږي. کله چي څوک په کلاسیک ادب کي دا قاعده وګوري، د پېښوریانو خبره، ایکي یوه استثنا لاهم نه سي پکښې پیدا کولای. مثالونه ئې:

منه ـ منې، خښته ـ خښتې:

حمید مومند وایي:

چې زغمم ستاد رقیب بدي **فتنې** زه
یاره کله یم دا هسې بې **کینې** زه

(کلیات ـ ۲۱۹مخ)

د دې غزل نوري قافیې (ینې، سینې، نینې، پښتنې، ستنې، ادینې، مدینې) دي چي د ټولو فشار پر وروستۍ څپه دئ.

اشرف خان هجري وايي:

د دنيا خـــونه د باد په مـخ **ايرې** دي
پاينـده چـارې هـورې دا **مـسخرې** دي
(۴۷۶ – مخ)

نوري قافيې ئې (خورې، ديرې، ښهرې، تېرې، اسرې، منارې، هورې، پېرې، سپېرې، سورې) دي او يوه ئې هم داسي نه چي فشار دي ئې پر لومړۍ ښپه وي[۸].

***

## ۲،۲،۶: د فعل په گردان کي د مصدري لام ساتل:

د کندهار لهجه د فعل د گردان په وخت کي د مصدر وروستی لام ساتي او يايې غبرگوي. لکه راغللم، ورغلله، غوزار سولم،...

زموږ ليکوال اوس د راغلم، ورغلم، غوزار سوم، ... شکلونه غوره گڼي. خوشحال خان خټک هم د غبرگ لام قاعده پاللې ده.

**راغللم** په شهر لاس په لاس شوه له ما ورکه
کوی په کوی جاروزم پسې غـواړم بخـارا
(۷ – مخ)

يا:

پـه **درتللو** ئې شـړې پــه تلو ئې بــولې
چې ئې نه پرېږدې په هيڅ کې خوشحال څه کا
(۲۱ – مخ)

---

(۸) دا موضوع ما پخپل کتاب "پر معياري ژبه د معيار په ژبه يوه څېړنه" ۱۱۱ – ۱۱۴ مخونو کي مفصله شړلې ده.

**یا:**

ښه چې **راغللې** په غېږ کې
بیا مې لرې د زړه زنګ دی
(۳۱۵-مخ)

***

**یووړله (یووړه):**

**خوشحال وایي:**

هغه **یووړله** له ځانه، دا فاني دنیا اې ځوانه!
چې ئې تار په تار خوره کړه، نه هغو چې ئې ونغښته
(۱۹۸-مخ)

**په نورو لهجو کې (یووړه) د (یووړله) پر ځای ویل کیږي.**

***

**شوله (شوه):**

**خوشحال خان وایي:**

عارفانو ته ترخه **شوله** تر زهرو
په غافل باندې شیرینه تر ګني ده
(۲۵۶-مخ)

**په فراقنامه کې هم دا قاعده موندلای سو:**

دا خبره له استاده
په دا ځای **شوله** رایاده
(۶۳-مخ)

**(شوله) په نورو لهجو کې (شوه) ویل کیږي خو خوشحال خان د لوېدیځې لهجې په شان راوړې ده.**

**حمید مومند ویلي دي:**

هنګامه د جنون هسې **شوله** ګرمه
چې دانش ئې دم واهه نه شو له شرمه
(۳۵۸ – مخ)

**کړله (کړه):**

**کامګار خټک وايي:**

په پوښتنه زما راغلې
که دې لار **کړله** غلطه
(دیوان – ۴۹مخ)

وروستی نیم بیتی که له ختیځي لهجې سره سم وویل سي باید (که دې لاره کړه غلطه) وي.

***

**۲،۲،۷: وای (تمنايي حالت):**

د (وای) تمنايي کلمه په ختیځه لهجه کي د (وې) په شکل استعماليږي.

**خوشحال خان خټک ئې د (وای) په شکل راوړي.**

څه ګنده عالم دی مه ئې دود **وای** مه ئې رسم
وږی په ځای پرېږدي و مړو ته صلا کا
(۲۸ – مخ)

**یا:**

که دې زلفې نه **وای** تار تار
ما به نه ژړل زار زار
(۶۴ – مخ)

**یا:**

بـــدرگه کـــه مـــحبت راسره نــه**وای**
یک تنهابه په خونخوارو لارو تلل څوک
(۱۰۴- مخ)

**یا:**

تروه ترخه که نه وای د خوږو قـدر بـه نـه**وای**
سکه ځکه جدايي شوه اشنايي سره واجـبه
(۱۹۱ - مخ)

**"دخوشحال رباعيات" په ځينو ځايو(۱۲۳، ۱۲۴، ۱۳۵ مخونه) کي (وی) کښلي خو په ۱۴۷مخ کي ئې بيا (وای) ليکلی دئ.**

مرگ**وای** هم رنځ**وای** هم ناتوانی**وای**
عـــمرپه غـم کـښې پريـشـانی**وای**

د ښـــو ښـــو جـــونو ديـــدن دپـــاره
يـا سـل يـا دوه سـو کالـه ځـوانی**وای**
(رباعيات- ۱۴۷مخ)

**رحمان بابا ئې د (وی) په شکل راوړي (۲۰۸مخ)، که د کاتبانو لاسوهنه نه وي.**

**دهجري په دېوان کي ځای ځای "وی" د "وای" پر ځای ليکل سوی دئ:**

روښـاني مـيرزا بـه اووې کـه زنده**وی**
چې هجـري پـه نظم نـن نـوی حکمـت کـا
(۲۶۵- مخ)

**خو د عبدالقادر په کلام کي بيا "وای" ډېر په سترگه کېږي.**

یا وحوش وای یا طیور یا بل اشیا **وای**
کشکې زه نه وای پیدا بني آدم
یا مې مرګ د هلکوالي وای چې خلاص **وای**
وه مې نه لیدای دا هومره ډېر الم
(۱۰۶ – مخ)

حمید مومند ویلي دي:
وران به **وای** جهان له بې نیاوۍ که بادشاهانو
کړای د ستا په څېر دا هومره کبر و تغافل
(کلیات – ۱۳۴ مخ)

**د حمید مومند په کلیات کې د (وای) پر ځای کله کله (وې) هم په مخه راځي:**
د زړه زخم وم وژلی نهایت
که مې نه **وې** تر خولې شوی سرایت
(۵۱ – مخ)

**دلته (وې) د شرطیه (وای) پر ځای راغلی دئ او دا فیصله ګرانه ده چې دا به د حمید خپل وینګ وي که د کاتب یا مرتب تلفظ.**

میرزاخان وایي:
که مې **وای** د حقیقت ژوندون لیدلی
یو زمان به بې دیدنه نه پایېږم
(۸۲ – مخ)

یا:
که مقصود ئې د خپل مخ ننداره نه **وای**
د انسان جامه ئې څه لره کړه سازه
(۱۴۳ – مخ)

کامګار خټک وایي:

یا مې مینه په یار نه **وای**
یا مې یار ستمګار نه **وای**
(۱۵۴ – مخ)

**میرزا حنان بارکزی وایي:**

نسب نه دئ شرط په مینه کي که **وای**
د محمود مینه به نه وه له ایاز
(۶۷ – مخ)

**د حمیدد سبک پیرو شاعر مولوي بریالي کندهاري ویلي دي:**

د طلب نغده چي وړي په ناکامۍ کي
بالکل مه **وای** د دې دهر د بازار مخ
(اهار – ۲۶مخ)

**معصوم هوتک ویلي دي:**

که د میني تړون نه **وای** د "معصوم" په حساس زړه کي
لا د مخه بې سوځلي وای قلم و جزدان د واړه

***

**شوای:**

**خوشحال خان وایي:**

هیڅ سزا ئې نه شي باندې لاس د ماد زړه **شوای**
توري زلفې ستا وای چې دایم د زړونو غلا کا
(۲۹ – مخ)

**دغه راز ۲۱۱مخ، ۲۱۹مخ، .... خو ځای ځای د دېوان له ترتیبوونکي څخه د لیکدود تجانس ګډوډ سوی دئ.**

**واست، واستئ:**

په دستارنامه (۲۰۹مخ) کي د "واستئ" حالت ثبت دئ "که
واړه سره يو ځاى په يوه اتفاق **واستئ**، څوک مه به مات نه کا،...".
په دغه راز حالاتو کي د کندهار په لهجه کي د "واستئ" پر
ځاى "واست" ويل کيږي.

د (واى، واست، ياست) شکلونه په لوېديځه لهجه کي عمومي
استعمال لري او په نورو لهجو کي ئې پر ځاى (وى، وې، يى) کارېږي.
د کلاسيک ادب استعمال ئې لوېديځ ګړدود ته ورته دئ.

پوهاند دوکتور زيار صاحب د (واست، ياست) شکل د
(استئ، ياستئ) په وړاندي معياري ګڼي. (وګ: ليکلاربښود – ۴۸مخ)

***

**۲، ۲، ۸: "ستا، زما، زموږ، ستاسي" ضميرونه:**

د خوشحال خان په کلام کي دا ضميرونه له کندهارۍ لهجې
سره سم راوړل سوي دي. پوهاند دوکتور زيار صاحب وايي چي دا
ضميرونه د ختځکو په اوسنۍ لهجه کي (دتا، دما، دموږ، دتاسي)
ويل کيږي (د خوشال ادبي پښتو – ۳۰مخ).

د کندهار په لهجه کي (زما، ستا، زموږ) يوه څپه ويل کيږي او
خوشحال ئې هم يوه څپه وايي. په ختيځه لهجه کي (زما) دوې
څپې (زَما) ويل کيږي، (ستا) د (دَتا) په شکل دوې څپې او
(زموږ) د (زَمونږ) په بڼه دوې څپې ويل کيږي.

د رحمان بابا په ديوان کي (ځما) دوې څپې دئ:

ګوره هسې کردګار دى رب **ځما**

چې صاحب د کل اختيار دى رب **ځما**

د کندهار په لهجه کې چې د (ځما) ضمیر د دوو ځپو وینګ ضرورت احساس سي نو په دغه صورت کې د (زُما) په شکل تلفظ کوي یعني لومړي توري ته ئې (پېښ = ضمه) ورکوي او په ختیځه لهجه (زې) ته زور = فتحه.

شمس الدین کاکړ په یوه بیت کې د (زما) یو ځپیز او دوه ځپیز شکلونه دواړه راوړي دي:

**زما** د حسن ځراغ ګل شو "شمس الدینه"
اې **زُما** د زړه پتنګه څه وې څه شــوې؟

په (لیکلاربښود – ۵۳ مخ) کې د (زما، زموږ) ضمیرو دوه ځپیز وینګ په دې دلیل معیاري ګڼل سوی دئ، چې ویونکي ئې زیات دي خو پر ځنګ ئې دا فتوا هم ورکول سوې ده چې "په شعر کې دواړه بڼې جواز لري، ان (زموږ) درې ځپیز (زموږه) هم راتلای شي". زه د دې عجیبې فتوا په سِر پوه نه سوم. کله کله لیدل کېږي، چې ځیني لیکوال د خپلي خوښي لهجې د کومي قاعدې له پاره د ژبپوهني د مجوِز موندلو په خاطر پرنسیبونه د خپلي مرضا سره سم پرله اړوي او رااړوي. دغو کسانو پخپل ذهن کي یوه لهجه د معیاري په توګه منلې ده او د هغې د مسجل کولو له پاره د ژبپوهني له پرنسیبو ځخه په بې پرنسیبۍ سره استفاده کوي. د مثال په توګه د (ډېروالي، نه التباس، باقاعده ګۍ، سپما، اسانۍ او روانۍ، بلاغت، لرغونوالي) پرنسیبونه مني. خو له هر یوه ځخه په هغه ځای کي کار اخلي چي د ده د خپلي خوښي لهجې سره مرسته کولای سي. که د ده د خپلي خوښی لهجې ګټه په لرغونوالي کي وه، لرغونوالي ته ډېر اهمیت ورکوي په ډېروالي او نه التباس او نورو

کې بیا ری نه وهي؛ که ئې فایده په ډېروالي کې وه بیا پر ټول
کلاسیک ادب، روانۍ، ساده ګۍ او باقاعده توب باندي چلیپا
کارېږي؛ که ئې مفاد په سپما کې وو، بیا دا نور ټول پرنسیبونه په لغته
وهي. دا روش نه علمي دئ او نه هم عملي. پرنسیبونه باید د خپل
ژبني اهمیت او منطق له مخې درجه بندي سي او قیمتونه ورکول
سي. په دې صورت کې د عندي خوښیو او ناخوښیو مخه نیول
کېدلای سي.

***

۲،۲،۹: ولاړ، ولاړل:

د کندهار په لهجه کې د (تلل) مصدر د ګردانولو پر وخت
هره صیغه په سر کې (واو) اخلي: ولاړ، ولاړم، ولاړل. د پښتو په
ځینو لهجو کې دا حالتونه د (لاړ، لاړم، لاړل) په شکل راځي.
خوشحال خان ئې ډېر ځایونه د (ولاړل) په ډول کاروي.

ستا د مخ په یاد ئې دواړه له زړه **ولاړل**
د خوشحال د زړه ارام، د سترګو خوب
(۳۶ – مخ)

یا بل ځای وایي:

هم مې زړه په غمزه وړي، هم ځان نادان کا
راته وایي وایه بیا دې زړه په څه **ولاړ**
(۷۳ – مخ)

یا:

مالیدې په دا چشمانو، ورانې مېنې د شاهانو
یکباره ورځنې **ولاړل** چې ئې درسته دنیا غوښته
(۱۹۷ – مخ)

یا:

ښه ښه یاران وو ښه اشنایان وو
چه په دولت کښېږ راسره ځان وو
دولت چه **ولاړ** شو راته ئې شا کړه
جدا له ما نه په یوه نان وو

(رباعیات – ۳۶مخ)

**پوهاند زیارصاحب هم د دې خبري تایید کوي او لیکي: "تر لاړ، لاړ شي ... ولاړ، ولاړ شي ډېر کاروي، بې له دې چې د خپل کرلاني ګړدود له مخې ورته له وېلاړسره تکر ورکړي" (وګ : د خوشحال ادبي پښتو – ۳۳ مخ). د ده په دېوان کي که ځای ځای لوستونکی له "لاړ شي، لاړ" سره مخامخ سي هغه دي د کاتب لاسوهنه وبولي.**

**د شمس الدین کاکړ په دېوان کي هم د (ولاړل) پر ځای (لاړ شول) اچول سوي دي، چي په هیڅ ډول ئې د شمس الدین کاکړ خپله ژبه نه سو بللای.**

د خوښی د هوس خلق له ما **لاړ شول**
اوس راپاته شول په غم لړلي خلق
(۷۳ – مخ)

**سم شکل ئې:**

د خوښی د هوس خلق له ما **ولاړل**
اوس راپاته سول په غم لړلي خلق

***

**۲،۲،۱۰ : (Metathese) اوړون:**

**په پښتو کي د ځينو لغتو توري سره اوړي. دې عملیې ته په**

ژبپوهنه کي (Metathese) وايي. لکه (روځ) او (ورځ)، (اروېدل) او (اورېدل)، (ازانګه) او (انګازه)، ...

د کندهار په لهجه کي تر موږ يو نسل وړاندي (روځ) او (اروېدل) په ويلو او کښلو دواړو کي باب ول خو اوس دا لغتونه د (ورځ) او (اورېدل) په شکل ويل کېږي. (ازانګه) اوس هم د خلکو په خولو کي جاري ده. شمس الدين کاکړ ئې داسي راوړي:

لکه غر د خپله درده **ازانګه** کړم
داسي زجر مي دلبره له تا وخوړ
(۵۹ - مخ)

د خوشحال خان خټک په کلام کي، د لوېديځي لهجې دغه ځانګړتيا سته.

البته د خوشحال خان په کلام کي د (ورځ) استعمال هم زيات سته. په ارمغان خوشحال کي خو هر ځای (ورځ) راغلې ده. له چاپي دېوانو څخه د دې خبري سپينېدل ګران دي، چي دا به د کاتبانو تصرف وي، که به د خوشحال خان خپل کلام.

د ميرزاخان انصاري په چاپي دېوان کي (ورځ) تر (روځ) زياته وينو. ما ته يو ځای دوه د (روځ) شکل په مخه راغلی دئ:

**روځ** ئې نوراني په خپل جمال کړ
شپه ئې هم د دوو زلفو دواج
(۶۵ - مخ)

يا:

د جمال جلوه ئې زياته ده له **روځي**
بيا د تورو زلفو زېب ئې توره شپه در
(۷۰ - مخ)

خو کله چي مي د چاپي دیوان هغه ځایونه چي (ورځ) پکښې په همدې شکل ثبت سوې ده، زما د کتبخانې له خطي نسخې سره مقابله کړل، په ټولو کي د (ورځ) پر ځای (روځ) لیکل سوې ده. د میرزاخان انصاري د دیوان دغه قلمي نسخه په ۱۱۲۷ هجري قمري کال د عبدالغني کاسي په لاس په ملتان کي خطاطي سوې ده.

کندهاری شاعر شمس الدین کاکړ د (روځ) شکل کاروي:

روښا **روځ** پر ما بې یاره توره شپه ده
دا تاریکه شپه به کله شي سحر بیا
(۳۴ – مخ)

***

**اروېدل :**

یو سر بل سر په سر جوړ کا دوه غوږونه
چې په دواړو **اروېدنه** د اواز کا
(د خوشحال ختک کلیات – ۱ مخ)

د دغه کلیات ترتیبوونکی وایي چي په "ارمغان خوشحال" کي دغه لغت "اورېدنه" دئ. د نورو چاپي او خطي نسخو بدیلونه ئې نه دي راوړي نو ګویا هورې هم "اروېدنه" ثبت دئ.

یا:

که کاته دي که لیده که **اروېده** دي
دا د ښو یارانو واړه دی شفا[9]
(۹ – مخ)

---

[9] [10] د خوشحال خان ختک کلیات (۲۵مخ) کي او ارمغان خوشحال (۳۳۳مخ) کي په ترتیب سره "آوریده شو" او "اوریده شو" راغلی دئ خو په مرغ لري (۳۹مخ) کي "اروېده شو" ثبت دئ.

**یا:**

دا چیستان د یار د شونډو راته حل شو
**اروېده** شو یو ځای نقل هم شراب [10]
(۳۴ – مخ)

**یا:**

تیار پېره وخت د کوچ راغی خوشحاله
په هر لوري ناري **اروې** د جرس [11]
(۸۴ – مخ)

**یا:**

چې د کبنلیو په لیدل نه وي محظوظ
د سرود په **اروېدل** نه وي محظوظ [12]
(۹۲ – مخ)

**یا:**

مست یم، مي پرست یم، رندي کړمه، کړمه، کړم
**واوره** محتسبه! باده خورمه، خورمه، خورم
(۱۴۸ – مخ)

د (واوره) کلمې ته ئې په حاشیه کي کبنلي دي "قلمی نسخې: واروه". گویا دا تبدیل د چاپي دېوان د ترتیبوونکو له خوا پیښ سوی دئ.

**یا:**

---

[11] په "مرغلري – ۱۶۰مخ" او د خوشحال خان خټک کلیات (۵۷مخ) کي هم "اروې" راغلی دئ خو په ارمغان خوشحال (۴۰۳مخ) کي "آورې" ثبت دئ.

[12] په "مرغلري" کي (۱۷۴مخ) او د خوشحال خان خټک کلیات (۶۲مخ) کي هم "اروېدل" دئ خو په ارمغان خوشحال (۴۱۲مخ) کي بیا "آوریدل" ثبت دئ.

د بهلـــول او د شیرشـاه خبـرې **اورم**
چې پـه هـنـد کـې پښتانه وو بادشـاهان
(۱۵۴ – مخ)

(اورم) ته ئې په حاشیه کې کښلي دي "قلمي: اروم"[۱۳].

زه نه پوهیږم چې موږ ولې د "اروېدل" شکل له کلاسیک قدامت او په لوېدیځه لهجه کې له استعمال سره سره له لیکني ایستلی دئ په داسې حال کې چې د "اروېدل" شکل په استعمال سره به مو له "اورېدل = باریدن" سره شکلي التباس هم ورک کړی وای.

په دستارنامه (د پېښور چاپ) کې هر چیرې د "اروېدل" شکل خوندي سوی دئ. لکه: "... دا چه دِ وارویدلی، د خروار مُشت هم نه دی"(۲۰ مخ). په فراقنامه (۲۳ مخ) کې هم "اروېده" لیکل سوی دئ.

**اروېده** پـه دوا ړو غـوږو
هـــم پـــه تـــا اروو ي زړه

په سواتنامه (۲۰ مخ) کې لولو:

پښـتـانه وا ړه نـادان د جـــهـل کـان دي
که ئې **واروې** یوسفزیه په بل کـان دي[۱۴]
(۲۰مخ – د کابل چاپ)

---

[۱۳] په کندهار چاپ "مرغلرې" (۲۵۱مخ) کې هم "اروم" ثبت دي خو په ارمغان خوشحال (۴۶۰مخ) او د خوشحال ختک کلیات (۹۶مخ) کې بیا "اورم" لیکل سوی دئ.

[۱۴] په ارمغان خوشحال کې دا دوهم نیم بیتی داسې دئ:

"که ئې واورې یوسفزیه په بل شان دي"
(۱۰۲۲مخ)

او د خوشحال خان ختک کلیات کې بیا بل راز ثبت دئ:

"که دې واورېد د یوسف دا په بل شان دي"
(۹۲۱مخ)

اشرف خان هجري ويلي دي:

نصيحت د ناصح نه **اروې** سرکشه
په محسنو پسې ځې خپله رضا کړې
(۲۰۳ - مخ)

دغه راز د هجري دېوان ۲۰۸، ۲۵۳، ۳۰۹ مخونه، ...

عبدالقادر خان وايي:

چې له کبره ئې سم نه ويل و چا ته
اوس کړې خبرې **اروي** له هر چا
(۳۳ - مخ)

دغه راز ۴۷، ۲۹۵ مخونه، ... د حميد مومند په کليات کي ځای ځای "اروي" د کاتب یا مرتب له چپاوه خوندي پاته سوی دئ.

ستور د سر په سترگو غوړ **اروي** همويني
سترگې غوړ بويه د زړه بينا شنوا
(کليات - ۱۱مخ)

د ميرزاخان انصاري په دېوان کي د "اورېدل" شکل عام دئ خو ځای ځای "اروېدل" هم په سترگه کېږي:

کم دليل عالم ئې نه **اروي** له ليري
د خپل راز خبري واړه د مقرون کا
(۲۶ - مخ)

يا:

"ميرزا" **واروه** اوازونه
واړه دا وايي يک لخته
(۱۱۲ - مخ)

د کندهار نقاد شاعر مرحوم حاجي ولي محمد مخلص ويلي دي:

چي دي پروت وو د بابا د سـخا بوږ
هم د ډېر ښه سـرېتوب و حيا بوږ
تا به څه رنګ بـولي زوی د هـغه پلار
چي له هيڅ بابه څوک نه **اروي** ستا بوږ

(۱۷۰ – مخ)

د دې قاعدې په مثالو کي (چکښو) او (څښکو) هم راتلای سي. چکښو يا څکښو ئې د کندهار تلفظ دئ او په ځينو لهجو کي (څاښکو، څښکو) ويل کېږي. حميد مومند وايي:

دا پـه کبـر لېچن کسـي بـه دې روغ شـي
کـه **څاښـکو** کـړې د خوبـانو خـاکپـای

(۲۶۰ – مخ)




***

۳،۳، ۱۰: د کلمې د سر تر (واو) وړاندي (الفونه):

د پښتو په لوېديځه لهجه کي د ځينو هغو کلماتو په سر کي الف زياتېږي چي په (و) يا (ی) سره پيل سوي وي. دا قاعده د خوشحال خان په کلام کي له ځينواستثناوو سره سره بيا هم ښه ډېره پالل سوې ده. مثالونه ئې دا دي:

***

اوبال:

د کندهار په لهجه کي دا کلمه (اوبال) ويله کېږي مثلاً وايي "د مرغانو په چيچيانو کار مه لره، اوبال بې در په غاړه سي".

په کلاسيک ادب کي ئې ما په همدې شکل مثال د ميرزاخان انصاري په ديوان کي موندلی دئ:

لـــه **اوبالـــه** نـــه ویریـــږي
خـــونرېزي ئـــې کـــړه مباحـــه
(۱۲۱ – مخ)

**زما د کتبخانې په خطی نسخه کي هم "لاوبال نه ویرېږي" لیکل سوی دئ.**

**خو په ارمغان خوشحال کي او د کندهار چاپ "مرغلري" کي بیا د "وبال" شکل راغلی دئ.**

حق ناحق ئې چي ثوک راشي په منګل کښې
خـــواروي ئـــې غـــم ئـــې نـــه وي د **وبـــال**
(ارمغان – ۲۲مخ)

**رحمان بابا ئې هم (وبال) لیکي (وګ : د دېوان ۱۰۶مخ)**

***

**اوجاړه:**

**دا لغت په لویدیځه لهجه کي په همدې شکل ویل کېږي. د کندهار مېرمني وايي "خپله مي اوجاړه، زه د بل پر در ولاړه". یا وايي: "دا خونه مېرمن لري؟ ولي داسي اوجاړه اوجاړي ده پکښې". یعني ولي داسي بې نظمه بې نظمي پکښې ده (زما د ۸۴ کلني مور په حواله).**

**په نورو لهجو کي د (ویجاړه، ووجاړه) په شکلونو ما اورېدلی دئ.**

**خوشحال خان ئې د (اوجاړه) بڼه راوړې ده.**

ما وې کلی میشت دی، چې په کلي باندې راغلم
تش کنډر پراته دي، خـــالي مېنه ده **اوجـــاړه**
(۲۶۳ – مخ)

**په ګلشن روه کي هم (اوجاړه) دئ (۲۹ مخ).**

**دغه راز په فراقنامه – ۶۶ مخ کې لولو:**

د دادخواهـــو زرآهـــونه
لـور پـه لـور **اوجاړ** ملکونـه

**هجري وايي:**

چـې اميـد پـه داړ د عمـر کـوې لـواړه
تـه بـه څـو پـايې زنـده پـه دا **اوجاړه**
(۴۴۹ – مخ)

**عبدالقادر خان ختک وايي:**

پـه طلـب ئـې د دنيـا ودانـې پرېـږده
لېونيـو غـوندي گـرزه پـه **اوجاړه**
(۱۹۳ – مخ)

**دغه راز بل ځای ئې ويلي دي:**

څـه عبـدالقادره پـه خـوله مينـه مينـه وايـې
څو دي لا **اوجاړه** نه ده مېنه، نه دي مينه[۱۵]

(۲۴۱ – مخ)

**کندهاری مخلص وايي:**

چـې ننـگ شـرم دي لـه سترگو څخـه ولاړ
دا منـم کـار بـــه دي هيڅ نشي **اوجاړ**
ولـي کـور ودانـول د بـل پـه مـال
خلـک بـد گـنـې د خـور و لـــور تـر بـاړ
(دلوی مخلص کليات – ۱۶۵ مخ)

***

---

(۱۵) دوهم نيم بيتی په کندهار چاپ (۷۹ مخ) "څو دِ لا اوجاړه نده مېنه، نده مينه" او کابل چاپ (۲۴۱ مخ) کې "څو د لا اوجاړه نه ده مينه، نه ده مينه" ثبت سوی دئ.

**اودل:**

دا لغت په کندهارۍ لهجه کي همداسي ویل کیږي او خوشحال خان ئې هم زیاتره په همدې شکل راوړي. د پښتو په نورو لهجو کي ئې د (وودل) ډول رواج لري. ځکه نو په چاپي دېوانو کي هم (وودل) سوی دئ. په ځینو لیکنو کي (اوبدل) سوی هم دئ چي دا راته د کاتبانو (پاړسیت) ښکاري. خوشحال وایي:

چې هر دوړ ئې و **اودلو** ته هوس کا
د زربفتو هنرچیرې دی اسان
(۱۵۸ – مخ)

په حاشیه کې ورته لیکلي دي چي "... دا مسرۍ په چاپي نسخه کې داسې ده:
(... وودو ته هوس کاندي). دلته بیا د چاپي متن ترتیبوونکو له (اودلو) څخه (وودو) جوړ کړی دئ. د خوشحال خپل تلفظ (اودلو) دئ.

په ګلشن روه کي اول نیم بیتی داسي دئ:
"په هر دهور ئې و **اودلو** ته هوس کا"
او په (مرغلري) کي بیا "چه هر ډوړئې و اودو ته هوس کاندي" دئ.

یا:

د بخملو په **اودل** به خبر نه شي
په شماره که اتیا زره بوریاباف وي
(۴۰۰ – مخ)

د خوشحال خان په شعر کي (ویده، بیده) هم هر کله د (اوده) په شکل راغلی دئ، (مثالونه):

گوره بیا دې څه په زړه کوم مې ګناه دی
چې لیدو لره دې درشم ځان **اوده** کړې
(۴۴۶ – مخ)

**یا:**

د سحر ګتنه ډیره تر هر څه ده
ځنې ځنې ورته ویښ ځنې **اوده** کړې
(۴۴۸ – مخ)

***

**اوربشینه:**

**د خوشحال خان په کلام او د پښتو په لویدیځه لهجه کي (اوربشي) او (اوربشینه) له (الف) سره یو ځای ویل کېږي. په نورو لهجو کي ئې (وربشي) او (وربشینه) بولي. خوشحال ویلي دي:**

د ماړه تر فهمه هیڅ نه ده غنمینه
ولې وږي ته حلوا ده **اوربشینه**
(۲۷۸ – مخ)

**یا:**

ډوډۍ غنمینه وی که **اوربشینه**
په وخت د لوږې خوږه لګینه
موړ د نباتو حلوا ته نه ګوري
هوښیار به پوه شي په دا رازونه
(رباعیات – ۸۳ مخ)

**یا:**

د غنمو په لذت به نه پوهیږي
د هر چا چې زیست روزګار وي په **اوربشې**
(۴۶۷ – مخ)

یا:

چې **اوربشې** کړي، کله غنم ریبي
پټه نه ده څه کړې هغه اخلې
(۴۷۹ – مخ)

**په دستارنامه – ۵۲ مخ کې راغلي دي: " آس دي ... نور ... ښه په پوخ وابنه او په اوربشو مړاوه شي". خان په سواتنامه کې ويلي دي:**

هر هر بيت د قصيدې چې درمرجان دی
په پښتو کې تر **اوربشو** لا ارزان دی
(۴۵ – مخ)

**عبدالقادر خان خټک وايي:**

قوت خو هومره چې قوت ځني حاصل شي
که په تهوک ئې د **اوربشو** که غنمين کا
(۲۳ – مخ)

**په ارمغان خوشحال کې هم د "اوربشي" ليکنه عامه ده.**

**رحمان باباوايي:**

هر چې کر کا د **اوربشو** غنم غواړي
له خاطره دې بيرون کا دغه خيال څوک
(۶۹ – مخ)

**حميد وايي:**

چې کرلې دې **اوربشې** د عمل دي
بيا به نه مومې غنم په اخسته
(کليات – ۱۹۲مخ)

***

**اوربل:**

**دا کلمه هم د پښتو په زیاترو لهجو کې (وربل) ویل کېږي. د لویدیځې لهجې ویونکي ئې (اوربل) تلفظ کوي. د خوشحال په کلام کې ما دواړه شکله لیدلي دي. یو ځای وایي:**

ډېر به ما غوندې په عقل تېرو بېر کړې
چې **وربل** دې تېروبېر د رځخه شته

(۲۶۵ – مخ)

**یا:**

دلربا، خوبا **اوربل** دې تیروبېر دی
هر هر تار ئې د عاشق تر زړه چاپېر دی
(۳۲۵ – مخ)

**یا:**

یا د ښو زلمیو خیال دی په شمله کې
یا د ښو نجونو د تور **اوربل** دماغ دی
(۳۳۲ – مخ)

**په ځینو ځایو کې خوشحال غوښتي دي چې د (اوربل = کاکل) او (اوربل = آتش) تر منځ د تجنیس صنعت تطبیق کړي خو دلته لا هم د چاپي نسخو ترتیبوونکو د (وربل) شکل لیکلی دئ او د خوشحال خان هڅه ئې په پام کې نه ده نیولې. مثلاً:**

توري دي زلفې دي تور دي **وربل** دی
مخ مې دي ولیده لکه اوربل دی
هم تور لوگی دی هم سرې لمبې دي
د غوښو زړه مې پکښې قبل دی
(رباعیات – ۱۲۸ مخ)

**قادر خان وايي:**

که طالع د عاشقانو توري نه وي
تور **اوربل** ئې په مخ ولي تار په تار شو
(۱۳۹ – مخ)

***

**اوربوز:**

په لوېديځه کي (اوربوز) ويل کېږي خو د خوشحال په کلام کي مي يو ځای (وربوز) وموند.

و مغل ته به خبرې په **وربوز** کړم
سر مې پرېوزه که به سر ورته بيا کوز کړم
(سواتنامه – ۱۵مخ)

که دا د کاتب يا مرتب لاسوهنه وي نو په دغه مورد کي د لوېديځ ګړدود او خوشحال خان خټک د لهجې لار سره يوه ده.

***

**اورسۍ:**

په پارسي ئې (اُرسی) بولي. په ظفر اللغات کي ئې په (آئينه) معناکړی دئ. خو په کندهار کي اورسۍ يو راز دروازې وې چي د پورته کېدلو او کښته کېدلو ميخانيکيت به ور ته جوړ سوی وو او د اړتيا په وخت کي (خوني ته د رڼا او هوا د راتلو له پاره) ئې پلې پورته کېدلې او کښته کېدلې. هجري وايي:

په **اُرسۍ**[16] به ثاني بدر هويدا شي
هر ساعت چي پرسيده د مخ آيات کا
(۲۷۰ – مخ)

---

[16] په چاپي متن کي: "په اُرسۍ که ثاني بدر هويدا شيَ" دئ چي ما ته سم نه ايسي.

په نورولهجو کي (ورسی) ویله کیږي.

***

**اورغوی:**

دا لغت هم په نورو لهجو کي (ورغوي) تلفظ کیږي. د خوشحال ختک په کلیات کي هم د (ورغوي) په شکل ثبت دئ. که دا د کاتب تصرف نه وي، نو دلته به هم په دغه مشخصه قاعده کي د خوشحال وینګ او د لوېدیځي لهجې تلفظ یو له بله سره بېل وي.

***

**اورکزي:**

د پښتنو دا قوم په ځینو لهجوکي (ورکزي) ویل کیږي. د لوېدیځي لهجې وینګ ئې (اورکزي) دئ. خوشحال خان هم (اورکزي) راوړی دئ:

که **اورکزي** ئې سراسر واړه ګمراه دي
اپریدي دي تر ګمراهو لا ګمراه
(۲۹۸ – مخ)

***

**اورمیږ:**

"مثلا اوسپنه پیدا ده چه توره شي - که د استاد تر لاسه ورغله، توره ځنې سازه شوه، ...، د کافر تر **اورمیږ** پریوته...". (دستارنامه – ۲۸ مخ). هجري وایي:

چې ئې لاس زما امیل د **اورمیږه** کړه
له نشاطه مي د سترګو دُر نثاروه
(۴۵۵ – مخ)

د هجري په دیوان کي (ورمېږ) هم راغلی دئ (۴۴ مخ) چي ما ته د هجري خپل تلفظ نه ایسي.

***

**اورښی:**

د اورښي کلمه په لوېدیځه لهجه کي د (اوښي) په شکل ویل کېږي. په ځینو لهجو کي (وښی) ورته وایي. د خوشحال خان په کلام کي ئې هم د سر الف ورسره پاته دئ خو په ارمغان، کلیات (د کامل صاحب) او په کندهار چاپ کي ئې ځای ځای الف ځني ایستلی او ځای ځای ئې (اوښی) کړی دئ. خوشحال وایي:

هغه وخت چې د زانگو او د **اورښي** وو
په مرغیې هیڅ نظر نه وو ده
(۲۶۷ – مخ)

یا:

ته لا طفل د **اورښي** ئې
که دې بېره کربلا ده
(۲۷۷ – مخ)

په چاپي نسخو کي (اوښی) دئ.

حمید مومندیې هم (اورښی) وایي:

که هر څو مې لکه وور کی د پرهېز په **اورښي** بلېښ
تپند زړه راځخه تر کو عاقبت ځان ته راکېښ
(کلیات – ۱۰۱ مخ)

***

**اوریځ:**

حمید وایي:

د مــــخ پټي ښکلي حسن کشش ډېر کا
ولې تاب وي د **اوريځې** د آفتاب سخت
(۴۷ – مخ)

بل ځای:

لا که مخ له خال و خطه آب و تاب ډېر
ولې تاب وي د **اوريځې** د آفتاب ډېر
(کليات – ۷۶ مخ)

د کندهار په لهجه کي (اوريځ) ويل کېږي او په نورو لهجو کي (وريځ).

***

**۳، ۱۰، ۱۰: اورېدل:**

د پښتو په نورو لهجو کي (اورېدل = باريدن) د (ووريدل) په شکل ويل کېږي.

رحمان بابا وايي:

که همه عمر باران وربانــدې **ووري**
لا ګرمي ئې په صورت کښې د آفتاب وي
(۱۰۸ – مخ)

د پروفيسر عبدالمجيد افغاني په چاپ (۷۶مخ) کي د لومړي نيم بيتي (ووري) د (اوري) په ښکل ثبت دئ.

د لويديځي لهجې تلفظ ئې (اورېدل) دئ. خوشحال خان دواړه شکله راوړي دي.

ستا د مهر باران نه **ووري** چې شين شي
مـا پـه زړه کرلـی سـتا د مينـې کـر دی
(۳۱۶ – مخ)

په ګلشن روه کې د خوشحال خان خټک د کلام په (۳۴ مخ) کې "ستا د مهر باران نه **اوري** چه شين شي" ليکل سوی دئ او همدائې د خوشحال خان خپل تلفظ بايد وي ځکه د ميجر راورټي له پاره د (ووري) او (اوري) تر منځ يو انتخابول مطرح نه وه.

يا:

په لاتقنطوا تکيه ده
که نه، اور **ووري** تور تم دي
(۳۴۲ - مخ)

په رباعياتو کي هم (ووري) راغلی دئ (۱۹۵ مخ).

ما ته (ووري) د کاتبانو او مرتبينو لاسوهنه ښکاري (والله اعلم).

***

**اوړکی:**

هجري وايي:

عارفان دي له نيستي هستي ويزار دي
لکه **اوړکي** ترخه ګوټ کا په شودو کښې
(۶۵ - مخ)

دغه راز ۳۵۴ مخ، ۴۳۲ مخ.

د رحمان بابا د کلام په هغه برخه کي چي ميجر راورټي په ګلشن روه (۲۶ مخ) کي راوړې ده، (ووړ = کوچنی) د (اوړ) په شکل ثبت دئ:

عاشقي به دِ اسمان غندِ سر لوړ کا
که مجنون غندِ هر څو په صورت **اوړ** ئي
(بيت د ګلشن روه په ليکدود دئ)

**اوړی:**

**اوړی د (دوبی = تابستان) معادل لغت دئ. د کندهار د لهجې تلفظ ئې همداسې دئ خو په نورو لهجو کې (ووړی) تلفظ کېږي. خوشحال خان ئې هم (اوړی) کاږي.**

په دا باغ کې یوه ونه، تل تازه تره برخنه
چې ئې **اوړی** ژمی برخورم، برخو هسې وي کنه
(۲۹۵ – مخ)

**دغه راز په سواتنامه کې داسې راغلي دي:**

تر کابل نه ئې هوا د **اوړي** ښه ده
د کابل هوا ترخه د ده خوږه ده
(۴ – مخ)

**حمید وايي:**

چې پو ښاک کا ژمی **اوړی** یو خرڅوړی
وي به سبزه لکه سروه ژمی اوړی
(کلیات – ۲۷۴ مخ)

**میرزاخان انصاري ویلي دي:**

گه اوره، برېښنا، تناچي باران ووري
گه(ي) **اوړی**، منی، ژمی او بهار شي
(۳۸ – مخ)

***

**اوسپنه:**

**خوشحال په دستارنامه کې ویلي دي:**

**"مثلاً اوسپنه پیدا ده چه توره شي- که د استاد تر لاسه ورغله، توره ځنې سازه شوه، ...، د کافر تر اورمیږ پرېوته..."**

**(دستارنامه – ۲۸ مخ). رحمان باباوايي:**

نصيحت د ناصحانو اثر نه کا
د سړي **اوسپني** خوشي تکول دي
(۹۵ – مخ)

**اوسپنه په ځينو لهجو کي (وسپنه) تلفظ کېږي. د کامګار ختک په دېوان کي زه د (وسپنه) پر شکل پېښ سوی يم:**

په کې نه مومم د صبر يو بخرې
که د **وسپنې** سينه کړم، زړه له سنګه
(۱۲۱ – مخ)

**زه د "وسپنې" دغه راز استعمال ځکه د بل چا لاسوهنه بولم، چي کامګارختک خو "ومه شه، ونه ليد، ..." لا د "اومه شه، اونه ليد" په شکل کاږي. له دې کارېدني سره سره د کلاسيک ادب مثالونه ئې ټول د لوېديځي لهجې له وينګ سره برابر دي.**

**عبدالقادر خان ختک اوسپنه په توصيفي شکل کي "اوسپرين" ليکي:**

د زړه مست لره د زلفو زنځير بويه
په **اوسپرين** زنځير دا مست تړلی نه شي
(۳۰۰ – مخ)

***

**اولجه:**

**دا لغت هم له لوېديځي لهجې پرته په نورو کي (ولجه) ويل کېږي. خوشحال خان ئې هم له الف سره يو ځای ليکي.**

بيا به صبر د خوشحال ختک **اولجه** کا
راځرګنده شوه سره کړې خوله په پانو
(۱۸۰ – مخ)

**بل ځای:**

لـه کـوره لوټـه واخلـي، استنجا لـره روان شـي
تقوی تر هسې حده، په **اولجه** ئې وړي کـه زر شته
(۲۵۹ – مخ)

**یا:**

له ځوانمرده هومره غواړه چې د زیست شي
د نـامرد خـو نـه هـمه واړه **اولجه** کـړه
(۳۰۲ – مخ)

**دغه راز دستارنامه – ۹۵ مخ کې راغلي دي:**

**"... غلیم نفاق شمارلی بویه، چې دا هسې وخت اولجه دی".**

**په ارمغان خوشحال کې زیاتره "اولجه" ثبت ده خو کله ئې "اُلجه" هم لیکي (۱۸، ۲۰ مخونه). هجري ویلي دي:**

**اُلجه** مـال لـه ترکـه چـا گټلی نـه دی
د بـاغي نـه و قاضـي تـه څـه فریـاد دی
(۱۹۹ – مخ)

**میرزاخان ویلي دي:**

دا حـضور زمـان **اولجـه** ده
وبـال پرېـږده کـړه ثـواب
(۶۴ – مخ)

***

**اوسی (هوسی):**

**د کامگارختک د دېوان د الف ردیف په لومړۍ نیمگړې غزله کې د پنځم نیمگړي بیت په دوهم نیم بیتي کې د (اوسی = هوسی) له سرخخه الف ایسته سوی دئ او "وسی" ځیني جوړه**

سوې ده. دی وایي:

"د **وسۍ** مشک ئې پیدا کړه په صحرا"

(د کابل چاپ دېوان – ۱ مخ)

کامګار ختک د خوشحال خان ختک کړوسی دئ . که د "وسۍ" دغه راز وینګ د ده خپل تلفظ وي او د کاتب لاسوهنه نه وي، نو بیا څوک ویلای سي، چي دغه وخت د اوسنۍ ختیځي لهجې قاعدې د تکوین تر مرحلې وتلي او شعر ته ئې لار موندلې وه.

***

**اولس:**

دا کلمه د پښتو په نورو لهجو کي (ولس) ویل کېږي او مشتقات ئې هم بې الفه وي. لکه: ولسي جرګه، ولسوال، ولسوالي، ...

خوشحال خان ئې د (اولس) په شکل راوړي:

درست **اولس**، قبیله واړه
ګرفتار په دېر غضب شول
(۱۰۷ – مخ)

یا:

په بنادي سره شریک دي **اولسونه**
غم یو ازې د خوشحال ختک د ځان دی
(۳۱۸ – مخ)

یو ځای مي د (ولس) په شکل هم په ستر ګه سو:

د ختک **ولس** په ننګه نه پوهېږي
کار ئې درست د نادیده و په خصال دی
(۳۴۷ – مخ)

خو دې بيت ته ئې په حاشيه کې کښلی دی، چی په "دويمه او دريمه" خطی نسخه کې (اولس) ثبت دئ.

دغه راز په دستارنامه - ۱۵۴ مخ کې لولو:

"... پښتون ډير دی، تومنونه **اولسونه**، د واړو گنجايش نشته. که حق تعالی نجات راکړه ... په کور عليحده تاريخ به انشا شي". د خوشحال کړوسی کامگار خټک وايي:

د آشـنا په عشق کې هسې بينوا شـوم
چې خندان د **اولس**، کلي، محلت زه يم
(۷۴ - مخ)

***

**اولکه:**

دا کلمه په ختيځه لهجه کې (ولکه) تلفظ کېږي. اوس ئې د (واک، قبضه، تصرف) په معنا استعمال عام دئ. د کندهار په لهجه کې (اولکّه) ورته وايي. خوشحال خان ئې هم (اولکه) ليکي. په دستارنامه (د ۱۹۹۱ع چاپ) کې لولو:

په دستارنامه کې دا کلمه داسې لولو:

"... چنگيز خان کافر خوگ خوروه، اتفاق ئې په قوم په قبيله په خيل خانه کښې وه، پلار ئې د يوې **اولکې** څښتن وه. ده په ربع مسکون حکم وچلاوه..." (۲۰۸ مخ).

د هوتکو په نارو کې يوه ناره داسې ده:

د قيتول پر سر مې ده راييا ولاړه
يوه لو ناره ئې وکړه، د حاجي ميرخان گټلې **اولکه** ولاړه

***

**ايږ:**

په کندهار کې ئې (ايږ) بولي. په ختيځو لهجو کې (يږ) ورته

وايي. د ميرزاخان انصاري ديوان په قلمي نسخه کي (زما د کتب خانې) دا لغت همداسي راغلی دئ، خو په چاپي ديوان کي ئې د دغه لغت مربوطه غزل څکه د (ياء) په رديف کي راوړې ده، چي نوري قافيې ئې (خيږي، کيږي، لويږي،...) دي او څرګنده خبره ده، چي (ايږ) ئې د (ايږی) په شکل ثبت کړی دئ.

مګر بخل دي په حلم باندي زور شو
و جحيم وته تيار شوې لکه **ايږی**

(۲۳۱ – مخ)

زما د مطلب ټکی په (ايږ) يا په (ايږي) کي نه دئ، بلکي د دغه لغت د سر په الف کي دئ چي ګويا ميرزاخان ئې هم (ايږ) ليکي نه (يږ).

***

**اينه:**

په کندهاری لهجه کي اينه (جګر = lever) ته وايي او د تلفظ پر مهال ئې فشار پر دوهمه څپه راځي. اينه د (جګر) په معنی په نورو لهجو کي (ينه) ويل کېږي او فشار ئې هم پر لومړی څپه دئ.

خوشحال خان خټک يو ځای ويلي دي:

ستا له خويه نه مي خوږينه ده **اينه**
ځکه هسې وهم کاني په سينه

(مرغلري – ۳۴۲مخ، کليات د کابل چاپ ۲۸۷مخ)

بل ځای ئې (ينه) هم راوړې ده:

د دلبرو په ستاينه
ما پخه کړه خپله **ينه**

(مرغلري – ۲۶۲مخ)

**میرزا حنان بارکزي ويلي دي:**

ستا د مینې ګرګ په هسې شان رنځور کړم
چې زهوب مې مدام وزي له **اینې**
(۱۸۱ – مخ)

**بل ځای وايي:**

تر وربښموئې پسته هسې سینه ده
وبغل تې د زاهد خوږینه **اینه** ده
(۲۰۴ – مخ)

**مولوي بريالی وايي:**

چمبه ګل مې په سینه لاسونه سره کا
په **اینه** مې وهي ګوتي د منګول ناز
(اهار – ۴۷ مخ)

**تر (واو) وړاندې د (الف) د زیاتولو قاعده دومره پراخه وه، چې "ونه لید" غوندې کلمات لا هم "اونه لید" او "ومه شه" د "اومه شه" په شکل ويل کېدل. کامګار خان ختک ويلي دي:**

په دنیا کې مې **اونه لیده** په سترګو
په فردوس کې د سرور نبي صحبت را
(دیوان – ۲۴ مخ)

تر قیامته بیا په ما باندې **اومه شه**
که د تا د لاس د زخم څه درمان کړم*
(دیوان – ۶۴ مخ)

**دغه راز "اوخوت" په ۶۸ مخ کې.**

---

* د اسمي الف (اینه) او د فعلي الف (اوکره) دوې ځله بېلې ښېښې دي، وروستنی، وروستنی یا اوسنی ده (ع. پالوال).

***

### ۲،۲، ۱۱: څخه:

(څخه) هم يو هجايي تلفظ لري هم دوه هجايي. له دوه هجايي تلفظ سره ئې د ختيځو لهجو کاتبانو مشکل نه دئ موندلی او ځای ځای ئې پر خپل حال پرې ايښی دئ، خو يو هجايي تلفظ ئې يو مخيزه ايستلی او پر ځای ئې (نه) ايښی دئ (وګ : معياري پښتو – ۲۱۶ مخ).

د دې کلمې پر ځای د پښتو په ځينو لهجو کې (نه) توری استعمالېږي. د خوشحال خان په کلام کې د (څخه) استعمال ډېر په ستر ګه کېږي. داسي ځايونه هم ډېر دي چي د (څخه) پر ځای (نه) ورلوېدلی دئ او که دغه ځايونه بيرته په (څخه) وليکل سي، د شعر پر روانۍ باندي ښه اثر ښندي. مثالونه ئې:

موسی **څخه** هيڅ نه وو، ورڅخه يوه عصا وه
قارون څخه دنيا وه، خود ئې وليدل آفات
(۳۹ – مخ)

د پښتو په ځينو لهجو کي په پورتنيو مواردو کي (سره) کلمه ډېر رواج لري (موسی سره هيڅ نه وو، ورسره يوه عصا وه).

د نورو کلاسيکو شاعرانو په دېوانو کي هم کاتبانو (نه) سرباری کړی دئ. لکه د حميد په دې بيت کي چي ئې لولو:

دا مې پرېوته پېښه د زړه لـــه داغــه
که د لاس **نه** د نمر مخي مشال پرېووت
(کليات – ۵۰ مخ)

د دوهم نيم بيتي سمه بڼه بايد داسي وي:

"که د **لاسه** د نمر مخي مشال پرېووت"

زما يقين دئ چي په خطي نسخه كي به د (لاس) په كلمه كي د سين پر سر باندي زور (فتحه) له كاتبه هېره سوې وي او د كليات مرتب يا بل چا به د نيم بيتي د وزن د پوره كولو په خاطر (نه) پر زيات كړى وي.

د خوشحال خان په كلام كي د (درڅخه، راڅخه) نور مثالونه دادي*:

چه هنر د بزرگئ **درڅخه** نه وى
طالع څه كا تا په سر واخلى مگر
(دستارنامه – ۲۸ مخ)

يا:

ځان او زړه، صبر ارام ئې له ما يو وړل
له ژوندونه خو هم دا څه وو **راڅخه**
(۲۰۵ – مخ)

يا:

يو قرين هسې پيدا نه شو **راڅخه**
چې دما په زړه ئې نه كړل منگول ښخه
(۲۰۶ – مخ)

يا:

آئينې وته نظر كړه گل به څه كړې
چې خپل مخ د گل په څېر **درڅخه** شته
(۲۶۵ – مخ)

---

* ورڅخه او ورسره دوې ځله بېلي ماناوي لري. راڅخه، درڅخه، ورڅخه د خاوندتيا مفهوم لري، خو راسره، درسره، او ورسره بيا د ملگرتيا په مفهوم او مانا دي: "له ژوندونه خو هم دا څه ؤ راڅخه".

**دغه راز په سواتنامه کي لولو:**

په ورتله به بيا خدمت **را ثخه** غــواړي
پښتانه چې سره وژنو، ديو پرې وياړي
(۱۴– مخ)

**هجري وايي:**

زړه عجب **را ثخه** گم شه نه ئې مومم
بې گمانـه بـه هـورې وي چې صنم دی
(۱۸۵– مخ)

**رحمان بابا وايي:**

پـه يــوه نظر ئې زړه **را ثــخه** يــوړ
خدای دي خير کا چي لا وکړي بل نظر بيا
(۱۷ – مخ)

**ميرزاخان وايي:**

دغـه نـن ساعت **دړ ثخـه** غنيمت دی
د پـــــرون انديــښنه واړه ده ســـلفه
(۱۶۴ – مخ)

**د کندهارلهجه د (ثخه) د استعمال دغه راز موارد ډېر لري. ملا محمد عيسی کندهاری د عمرجان صاحبزاده کيشانی (۱۳۴۸ هـ ق مړ) په مرثيه کي وايي:**

اوس ئې بېلتـون دئ لـه جهانـه **ثخــه**
ولاړئ صـــاحب لـه خراســانه **ثخــه**
(د؟ مخ)

**پوهاند زيار صاحب د خوشحال په کلام کي د "ثخه" د استعمال په ارتباط ليکي چي د خوشحال خان په کلام کي د دغه**

ضمیر "بېځایه کارونو څرک ... هیڅ نه لیدل کېږي ... او دا چي (څخه) ئې زیاتره د (سره) هممانیز کارولې دی کومه نادوده نه بلل کېږي"*. پوهاند صاحب د "څخه" بل انډول "نه" معیاري نه بولي او دلیل داسي راوړي، چي "له نفې وییکي (نه) سره ګډون پیښوي". دغه راز د کندهاري ګړدود "څه" هم معیاري نه ګڼي. دوی ئې دلیل نه دئ راوړئ خو غالباً به ئې مراد له "څه = قدری (فارسي)" التباس وي. پوهاند صاحب د دې ضمایرو پر ځای "له – سره" معادل معیاري ګڼي (وګ : د خوشال ادبي پښتو– ۷۹ مخ). زه د پوهاندصاحب دغه پیشنهاد سوې قاعده له پخوا څخه په ټینګه تعقیبوم**.

***

### ۱۲،۲،۲ : (پر) او (په):

د خوشحال خان په کلام کي د (پر) پر ځای زیاتره (په) راغلی دئ. پوهاند زیار صاحب هم دغي ګډوډۍ ته اشاره لري (د خوشحال ادبي پښتو – ۷۸ مخ) او دا بیا د ختیځو لهجواغېزه بولي. زما په خیال د (په) دغه راز بېځایه استعمال د خوشحال خپل انتخاب نه بلکي د کاتبانو لاسوهنه ده. د پوهاند صاحب دا خبره چي وایي " له کندهارۍ او تاریخي ادبي پښتو پرته نور زیاتره ګړدودونه (په) او (پر) سره ګډوي، پر یوه وخت یا دواړه په الي، ارتباطي او تسلسلي مانا کاروي، په بله وینا دواړه د (په) پازه پر

---

* "څخه" او "سره" یو د بل پر ځای باندي راوړنه مانایي غلطي پیښوي نو یو د بل پر ځای راوړني څخه یې باید غوڅ پرهېز وسي (ع. پالوال).

** "څه" د "څخه" وګړیز کورلنډ څېر دئ، او په ارتباطي مانا کارول کېږي (ع. پالوال).

څای کوي او یا دواړه په استعلایي مانا؛ یا په بله ژبه دواړه د (پر) دنده تر سره کوي، ..."[۱۷].

د پوهاند صاحب د دغي خبري د تایید له پاره د شمس الدین کاکړ یو بیت رااخلم چي د (په) او (پر) د کارولو ډېر ښه مثال کېدلای سي:

چي ئې شرط تاړه **په** سر د یار **پر** زلفو
مستو جبه د کشتن شو زما دل
(۸۱ – مخ)

د (په) او (پر) په برخه کي ما (هوتک) یو وخت په دعوت جریده (۱۱۳ – ۱۱۴ گڼه ۹ مخ) کي د زیارصاحب پر "وابښه پر خوله" باندي تبصره کړې وه او لیکلي مي وه، چي دلته د ظرف و مظروف په حکم (وابښه په خوله) کره* راځي. پوهاند زیار صاحب پخپل کتاب (لیکلاربښود – ۳۲ مخ د۱۳۸۶ش چاپ) کي زما په جواب کي بیا پر خپله خبره ټینگار کړی دئ او خپل دلایل ئې داسي لیکلي دي، چي: "... یو خو په ظرفي مانا او جاج (په) ما هیڅکله، په هیڅ گړدود او متن کي بې (کې) سربله نه دی موندلی او بله دا چي دلته اړینه نه ده چي وابښه دې کورټ او سکوټ دننه په خوله کي ونیول شي، بلکي کېږي د چا خبره هسې ئې اکټ وشي ...". زه د دوی له دغو دلایلو سره سره بیا هم "وابښه پر خوله" سم نه بولم او "وابښه په خوله" کره گڼم. دلته (کي) حذف سوی دئ او

---

[۱۷] زیار، مجاوراحمد (دوکتور)، ویي پوهنه – ۴۷ مخ، کابل پوهنتون – ۱۳۶۰ش. د دبري لیکه ده. دا خبره د لیکلاربښود په ۳۱مخ کي هم تایید کړې ده.

* ... "sará" په مانا دئ، که له کراهت څخه اخسته سوئ

**دا چي پوهاند صاحب وايي په هيڅ متن کي ئې (په) له (کې) پرته ليدلی نه دئ، د حميد دا شعر د دوی په جواب کي ورته راوړم چي ويلي ئې دي:**

رستمان د صبر **په** دا په ځمکه؟
و هلک ته د زارۍ وابنه په خوله کا
(د عبدالحميد مومند کليات – ۳۵۵ مخ)

**لومړی نيم بيتی سم نه دئ ثبت سوی سم شکل به يې داسي وي:**

رستمان د صبر زهد **په** دا مځکه
و هلک ته د زارۍ وابنه په خوله که

**يا:**

که هر څو ورته نيوه **په** خوله وابنه
لا ئې ځان لکه لمبه راته ګوابنه
(کليات – ۳۷۴ مخ)

***

**۲،۲، ۱۳: لره:**

**خوشحال دغه اداتي ضمير هم له لوېديځ ګړدود سره سم کاروي. پوهاند زيار صاحب د خوشال ادبي پښتو په ۵۲ مخ کي د دې قاعدې په مثال کي "هر طبيب لره چې ويرشمه ناقص دی" راوړی دئ.**

**د تلوکان ملاحسن اخوند (۱۲۴۵ هـ ق مړ) ويلي دي:**

چي چندڼ **لره** ورځي سر خو به بايلي
د اپي مارانو ځای د چندڼ سيوري

***

### ۲،۲، ۱۴: خبر، خبره:

د کندهار په لهجه کي (خبره) د (خبر – د باء په زوه ره کي) په شکل ویل کېږي. جنس ئې مونث دئ. د خوشحال خان په ځینو بیتو کي که (خبره، خبرې) د (خبر) په شکل راوړه سي، د مسری وزن ډېر روان کېږي. د (خبرې) په ستة والي کي د خان شعر بې وزنه سوی دئ. مثال ئې:

څوک د وصل **خبرې** کاندي

موږه خوښ په خپل بر بست یو

(۱۷۸– مخ)

په دې غزل کي هر نیم بیتی اته څپې دئ. که (خبر) د (خبرې) په شکل ولیکل سي، د نیم بیتي وزن یوه څپه زیاتېږي او نهه (۹) کېږي. خو که (خبر) د کندهار له لهجې سره سمه وکښل سي، د څپو شمېر اته کېږي او وزن هم په سمېږي. د دې غزل نور بیتونه داسي دي:

په سما مو قدم ایښی

لکه مزکه هسې پست یو

هغې خولې وته نظر کړه

هغه هسې نیست و هست یو

له موضوع سره د ارتباط په لړ کي، خوشحال (څپر) کلمه هم بې له (ه) کار کړې ده خو د کاتبانو لاسوهني له هغې څخه (څیره) جوړه کړې ده او د خوشحال خان شعر ئې بېخونده کړی دئ. بیت دا دئ:

لس کالونه تېر کا په یوه جامه خېرنه
کوز وجود برمنډ، په سر څیره* کښېږدي زرینه
(کلیات –۲۵۴مخ، کابل، مرغلري – ۲۷۳مخ)

**دلته (څیره = چهره، څهره) معنا نه ورکوي او دا کلمه غالباً (څپر) ده، چي د (خبر = خبره) پر وزن مجازا د (خولۍ) معنا ورکوي. (څپر) په نورو لهجو کي (څپره) ویل کېږي. په کندهار کښي څپر له ښاخلو او واښو څخه جوړ کړه سوئ وي چي د درمند غنم له وړو څخه په ایستل کېږي، او نارونه ئې پروړ گرځېږي.**

***

**۱۵،۲،۲ : د (ې) لنډون :**

**(د دې قاعدې له پاره د لنډون اصطلاح پوهاند زیار صاحب کار کړې ده) دا قاعده په کندهارۍ لهجه کي ډېره عامه ده او ما په (پر معیاري ژبه د معیار په ژبه یوه څېړنه – ۹۴مخ) کي په تفصیل سره بیان کړې ده. دلته ئې د خوشحال په کلام کي هم څېړم:**

***

**بې = به ئې:**

**خوشحال وایي:**

نه به سترگې د سړي په چا خوږې شي
نه **بې** ماته په اوبو شي د چا تنده
(۲۰۷ – مخ)

**د (بې = به ئې) قاعدې په پوهېدلو کي د پښتو د زیاترو لهجو ویونکي مشکلات لري. همدا سبب دئ چي د خوشحال خان ختک**

---

* ښایي له څیره څخه به د نارینه وو له پاره گلابتوني یخه خولۍ مراد وي، او د ښځو له پاره به زرینه جوغه مراد وه (ع. پالوال).

کلیات په (۱۳۲مخ، نوی چاپ) کې دا بیت له خپل اصلي حالته اړول سوی دئ او دوهمه مصرع ئې "نه ئې ماته په اوبو شي د چا تنده" ثبت کړې ده خو دې ته ئې پام سوی نه دئ چې د لومړۍ مصرع (نه به) د دوهمې له (نه ئې) سره د زمانې په لحاظ تناقض لري او دا تناقض بیا د خوشحال له "سخنورۍ" سره سر نه خوري. خوشحال خان د دومره کښته سوېې شاعر نه وو، چې د یوه بیت دوې مصرع ګاني دې په دوو بېلوبېلو زمانو کې سره وتړي.

بل ځای وایي:

اشـــرف خـــان بـــه چـــرته بنـــد وي
څـــه بـــه کـــا څرنـــګ بـــې ژونـــد وي

(فراقنامه – ۳۱مخ)

شمس الدین کاکړ ویلي دي:

کـــافران بـــې لـــه هیبتـــه مـــسلمان شي
مـــسلمان بـــه پـــه اســـلام سي مفتخـــر

(۵۷– مخ)

***

نهې = نهی ئې:

خوشحال خان یو ځای ویلي دي:

واړه امـــــر مـــــې قـــــبول دی
تـــرې توبـــه چـــې نهـــې نـــام دی

(۳۱۹ – مخ)

دلته (نهې = نهی ئې) ده. دا قاعده د کندهار په لهجه کې عامه ده.

یا:

**په هر لورې = په هر لور ئې:**

په دا اور کې دې زما لمن ونه سوه
**په هر لورې** رسېدلې شرارې دي
(۳۸۱ – مخ)

**دلته "په هر لورې = په هر لور ئې" دئ. دغه قاعده د کندهار د لهجې قاعده ده. د خوشحال خان ختک کليات (۲۷۱ مخ) کي دوهم نيم بيتی "په هر لوري رسېدلي شرارې دي" ليکلی دئ، چي سم نه دئ. په پورتني بيت کي "شرارې" له "دا اور" سره تړلي دي يعني د "دا اور" شرارې هر لور ته رسېدلي دي او دا مطلب په "هر لوري ئې رسيدلي شرارې دي" سره ښه افاده کېدلای سي خو دغه ليکنه بيا د شعر وزن له دوولسو څپو څخه ديارلسو څپو ته زياتوي او سکته منځ ته راوړي. د دې سکتې چاره په "هرلورې = په هر لوري ئې" سره کېږي او "سخن شناس" خوشحال له دغي قاعدې سره ښه پوره بلد وو او په شعر کي ئې کار کړې ده. که "په لوري رسېدلې شرارې دي" ومنو نو بيا دا حکم عام دي او له "دا اور" سره چي د (دا) په اشاره سره مشخص سوی دئ، نه جوړېږي. په دغه راز باريکيو باندي پوهېدل د متنپوه له پاره حتمي او لازمي دي.**

***

**څې = څه ئې:**

**خوشحال خان ويلي دي:**

ګرګدن ګردن د فيل خوري
څه ميږيه **څې** قوت وي
(۳۹۶ – مخ)

**دلته (څې = څه ئې) دئ.**

د خوشحال خان ختک کلیات (۲۸۵ مخ) او ارمغان خوشحال (۶۱۹ مخ) او د خوشحال ختک مرغلري (۴۸۳ مخ) کي دوهم نیم بیتی "څه میړی څه ئې قوت وي" راغلی دئ. دلته بیا وینو چي د "څې = څه ئې" په پوهېدلو کي مشکلات پېښ سوي دي ځکه ئې نو د بیت د وزن ساتلو په نیامت د خوشحال خان "میړیه" په "میړي" اړولی دئ. د کابل چاپ کلیات د "میړیه" په ثبت کي د هغي نسخې لیکنه په پام کی نیولې چي د خوشحال خان ختک په ژوندلیکل سوې ده.

***

**بورې = بوره ئې:**

**خوشحال خان وایي:**

که په دا حسن د گل غوندې پیدا ئې
**بورې** مور که ښا پیریه ئې راوړې
(۴۷۱ – مخ)

**دلته (بورې مور که = بوره ئې مور که ) ده. که ئې په بشپړه توگه ولیکئ د شعر وزن ته تاوان رسېږي.**

***

**پړې = پړ ئې:**

**خوشحال خان ویلي دي:**

چې مین شوې درست د یار په رضا درومه
اوس که خپله رضا کړې خوشحاله! **پړې**
(۴۷۱ – مخ)

**پړې = پړ ئې (ملامت ئې ).**

**یا بل ځای وایي:**

د عشق **شورې** د عاشق له دله نه ځي
په جهان ئې فيروزي ده په دا تور کې
(۴۷۷ – مخ)

دلته (شورې = شور ئې) دئ.

یا: دې = دي ئې: خوشحال لیکي: " ښه آس، ښه توره، ښه عورت په بخت په طالع په لاس کښیوزی - تجربه ئې هونبره چا کړې ده، چه پوست دِ (دې) تنګ وی، شادِ (دې) وبله ته نزدې وی، سترګې دِ (دې) غټې وی، سر دِ (دې) هسک او بې ګوشت وی ..."، (دستارنامه – ۵۳ مخ).

په قوسینو کې (دې) ما په نقل قول کې ورزیات کړی دئ او په ټولو ځایو کې "دِ = دې = دي ئې" معنا ورکوي. په دستارنامه کې دغه راز ځایونه نور هم سته (۶۱، ۱۰۶مخ).

***

**نې = نه ئې:**

نه په تله د جهان غم کړم
**نې** په راغله یم خوشحال
(فراقنامه – ۲۸مخ)

په حاشیه کې ور ته کښلي دي "نی: نه ئې، اصل: نه په".

***

**کې = که ئې:**

د سوات ملک چې پکې روغې حویلۍ دي
په هر کور **کې** ګلزارونه، سهیلۍ دي[18]
(سواتنامه – ۵ مخ)

---

[18] د خوشحال ختک کلیات (۹۱۸ مخ نوی چاپ) کی دا بیت داسی دئ:

د سوات په ملک کې روغې حویلۍ دي
په هر کور کې ګلعذارې سهیلۍ دي

**چې = چې ئې:**

**حمیدوایي:**

مخ به ئنې کوږ کا اوس د ستا غوندې دلبره
خدای **چې** کړوي له بدبختیه د چا ورځ
(کلیات – ۶۱مخ)

**دلته "چې" د "چې ئې" وظیفه سر ته رسوي.**

***

**تیغونې = تېغونه ئې:**

**هجري وایي:**

هسې شنه **تیغونې** وزوول له زمکې
چې ئې باغ کان د فولادو سر په سر که
(۱۱۷– مخ)

**په اصل کي "تیغونه ئې" دي چي په شعر کي یو سیلاب زیات کړی او سکته ئې پکښې راوستلې ده.**

***

**ډکې = ډکی ئې:**

**هجري ویلي دي:**

چنبې زیږ گلونه وزوول له تنه
هریو **ډکې** نمونه د چندڼ هار که
(۱۳۱– مخ)

**په متن کي "ډکی ئې" دئ چي دنیم بیتي یوه څپه ئې زیاته کړې ده اوشعرېې عیبي کړی دئ. که ئې دهجري پخپله ژبه "ډکې = ډکی ئې" لوستلی وای داعیب ئې له منځه تئ (تلئ).**

***

**رازې = راز ئې:**

**حميد مومند ويلي دي:**

دا چې تـه پـه هـسې **رازې** د رقيـب
ځکـه ورمـه زه ناسـازې د رقيـب
(۴۴- مخ)

***

**دردونې = دردونه ئې:**

**مولوي بريالی وايي:**

هجر شوخ فراق ئې شوخ **دردونې** شوخ دي
نازئې شوخ کبرئې شوخ کوي گفتار شوخ
(اهار – ۲۷مخ)

***

**۲،۲، ۱۶: يوه (د مذکر له پاره):**

په کندهاري گړدود کي (يوه) د (واو) په زوه ره کي سره د مذکر له پاره کارېږي او د (واو) په زوَر (فتحه) سره د مونث له پاره کارېږي. لکه: (يوه سړي راته وويل، يوه نجلۍ راغلله). دا جملې په نورو لهجو کي (يو سړي راته وويل، يوه جنۍ راغله) ويلي کېږي. د خوشحال په کلام کي هم د مذکر له پاره د (يوه) کلمه استعمال سوې ده.

چې احـوال د هـر **يـوه** راتـه معـلوم شو
هـر **يـوه** تـه مې تيـار کـړل يـو ځو چـخـه
(۲۰۶ – مخ)

**يا:**

په سنت به د همه زړونو مردود شي
که د چار شي تر **یوه** پوري مردوده
(۲۰۷ – مخ)

یا:

**یوه** زړه لره یوه مینه کافي ده
څوک چې ډیرې مینې کا د غم لایق شي
(۳۵۵ – مخ)

**د اول نیم بیتي لومړی "یوه" د (واو) په زوه ره کي او دوهم "یوه" د (واو) په زور (فتحه) باید وویل سي. یا:**

زویه چه ووت د پلار له رایه
توبه دې وکاکم بخت ته وایه
توبه که نه کا سزا به مومي
په دواړه کونه له **یوه** خدایه
(رباعیات – ۸۶ مخ)

**یوه: (د "واو" په زوه ره کي – د مذکر له پاره). حمید وایي:**

په **یوه** به دې هم سترګې خوږې نه شي
که نظر کړې د دې دور په دا خلق
(کلیات – ۱۲۳ مخ)

***

**۱۷،۲،۲: یو (د مونث له پاره):**

**هجري وایي:**

**یو** لقمه بې غمه نه لري د خورد
په څو رنګ نقش پیدا په یوه دم کا
(۴۰ – مخ)

حمید وایي:

تـر دا منځ **یــو** غزالـه فتنـه انګیـز
لکـه دی هـسې شـوخ چـشمه بلاخیـز
(۴۸۲ – مخ)

***

### ۲،۲،۱۸ : لمن :

په لوېدیځه لهجه کي (لمن) په همدې شکل رواج ده او جنس ئې د نورو لهجو په شان مونث دئ. په نورو لهجو کي ئې د (لمنه) په شکل وایي. خوشحال خان دا لغت د (لمن) په بڼه زیات راوړی دئ.

که لاس مې رقیبان په تیره توره سره پرې کا
**لمن** به دې لا هـم زما له لاسه نه شي خلاصه
(۲۲۵ – مخ)

یا:

لویـه پیشکشي ده پـه وصال کې درتـه وایـم
دُر ئـې پـه **لـمن** کـې ورتـه ګـوره تلوه
(۲۹۳ – مخ)

یا:

پـه دا اور کـې دې زمـا **لمن** ونـه سوه
پـه هـر لـورې رسـېدلي شـرارې دي
(۳۸۱ – مخ)

یا:

ګډ شم پـه ګلشن کې **لمن** د که کړم له ګلو
بیـا بیخـوده لاړ شم واړه ګـل راښخـه تـل شي
(۴۱۱ – مخ)

د دې بيت دوهمه مصرع به بناېي داسي وه: بيا بېهوښه پرېوزم واړه ګل راڅخه تل شي/دل شي. کاتب يا مرتب د "بېهوښه" پر ځای "بېخوده" وراچولی دئ.

يا:

د مـــرد چـه نـه وی لمـن خـيرنه
پـاک وی پـه ژبـه پـاک وی پـه ژمنـه
کـه زر بـلاوی انـــدوه دي نـه کـا
فربښـتې بـــه واړوی بـلا لــه ده نـه
(رباعيات - ۷۹مخ)

رحمان باباوايي:

ما دي ستا لمن ته اچولی دا خپل ځان دی
ستا دی ځما نه دی که دانا دی که نادان دی
(۲۳۹ - مخ)

هجري وايي:

مـــرګ بې واره لمن کله د چا نيسي
ولې نه پايي يو دم چي رزق ئې تم که
(۷۳ - مخ)

عبدالقادر خان وايي:

سرې سرې او ښکې مې له سترګو په لمن ځي
د يـار غمـه راشـه ګـوره لالـه زار خــپل
(۸۷ - مخ)

شمس الدين کاکړ وايي:

مـــحبت هـــسي لمـــن ده
چي پـر ځرخـه د زړه سـتن ده
(۱۰۷- مخ)

***

### ۲،۲، ۱۹: خپلوان:

خپلوان د (خپل) جمع حالت دئ. د ختیځې لهجې ویونکي دا کلمه اوس د مفرد له پاره هم کاروي او د لیکني ژبي ته ئې هم لار موندلې ده. د مثال په توګه: په دې جملو کي چي "دی زما خپلوان دئ" یا" دا زماخپلوانه ده"[۲۰] څخه ئې مرادیو تن وي. په لوېدیځه لهجه کي د مفرد له پاره د خپلوان کلمه نه راځي او پر ځای ئې "خپل" کاروي. د مثال په توګه: "دی زماخپل دئ، دا زماخپله ده، دوی زما خپلوان دي، تاسي زموږ خپلوان یاست"[۱۹].

خوشحال خان هم "خپلوان" د جمع له پاره کاروي.

بدخویي به د **خپلوانو** سره څوک کا
چې په خپله په خپل ځان پسندي اندوه
(۲۸۴- مخ)

حاجي ولي محمد مخلص کندهاری وایي:

**خپلوان** خپل کړه چي دي وس رسي تر څو
زړه ئې ساته د ځلمیانو د زړو
هغه څوک مه کړه له ځانه مرور
چي ئې بیا پخلا کوې په مرکو
(کلیات - ۲۱۰مخ)

په کندهار کي د "خپلوان" له پاره "کریبان، قریبان" هم رواج لري. د "قریبان" کلمه خو به ښایي د عربي "قریب" څخه راوتلې

---

[۱۹] په لوېدیځو مطبوعاتو کي د "طالبان" کلمه د مفرد (یوه طالب) له پاره هم کاروي. مثلاً (One Taliban was killed) یعني یو طالب وژل سوی وو، خو که دا انګرېزي جمله ټکي په ټکي وژباړل سي، معنی به ئې داسي وي: یو طالبان وژل سوی وو.

وي. په عربي کي د "قريب" جمع "اقارب، اقربا" ده، خو د کندهار په لهجه کي ئې د پښتو ژبي د جمع قاعده پر تطبيق کړې ده. حميد مومند د (قريب) کلمه د (خپل) په معنا کار کړېده. دی وايي:

که لړ داړ و ما "حميد" راکا په عشق کې
نشته بل يار و آشنا **قريب** زما
(کليات – ۱۷مخ)

شمس الدين کاکړ وايي:

**اقارب** شول عقارب راپوري نښلي
خدای و ما ته کړل دا خپل هسي بلا
(۳۲ – مخ)

اشرف خان هجري د "قريبان" پر ځای "قرابات" لغت راوړی

دئ:

زه ختک هرگز رضا په پرديس نه يم
د يار ميني کړم جدا له **قراباته**
(۳۵ – مخ)

***

**۲،۲، ۲۰: روڼا، رڼا:**

د کندهار په لهجه کي د (روڼا) وينګ عام دئ. نوري لهجې ئې د (رڼا) په شکل تلفظ کوي او لومړي توري ته ئې زور (فتحه) ورکوي. د خوشحال خان په کليات (کابل چاپ) کي دا دواړه شکله زما په ستر ګه سوي دي:

زوړ خوشحال چې د دلبرو ديدن غواړي
د دلبرو په وصال کې **روڼايي** ده
(۲۸۷ – مخ)

یا:

لکه ستا کسي په خوارو برابر شي
د طالع تر **رونا** بنه دا سیاهي شوه
(۲۹۰ – مخ)

***

**۲،۲، ۲۱: يي = وي:**

د لوېديځې لهجې ويونکي کي د "ول" په گردانولو کي د راتلونکي زمانې احتمالي (وي) حالت زياتره د (يي) په شکل کاروي. مثالونه ئې دا دي:

- زما په خيال مېلمانه به راغلي يي (راغلي وي).
- خور به مي له کابله راغلې يي (راغلې وي).
- تاسي به اورېدلي يي (اورېدلي وي) چي فتح خان د کلابس وو.

ما د خوشحال خان په دستارنامه (۱۱مخ، د ۱۹۹۱ع چاپ پېښور) کي د (يي = وي) شکل ليدلی دئ. دی ليکي: "تا به آرويدلی **يي** چه پښتانه د کوهستان، راجگان د هندوستان چه ډېر نام و ناموس لري- تهور و بسالت په افراط لري-...".

په دې عبارت کي "تا به اروېدلي ئي = تابه اروېدلي وي" له لوېديځې لهجې سره سم راغلی دئ.

د دستارنامې دغه چاپ له هغې نسخې څخه تهيه سوی دئ. چي د خوشحال خان تر مړيني نونس کاله وروسته د هغه د لمسي افضل خان په غوښتنه استنساخ سوې ده. په کابل چاپ دستارنامه (۶ مخ) کي ئې دغه ځای "تا به هم اورېدلي وي ..." ثبت کړی دئ. بل ځای د خط د هنر په باب ليکي: "کور د ده وران شه چه د

ده دمخه څه ورانه يې، څه ودانه يې په جهان ..." (دستارنامه ۳٦ مخ).

(څه ورانه ئې، څه ودانه ئې = څه ورانه وي، څه ودانه وي).

په کابل چاپ دستارنامه (۱۹ مخ) کې ئې دا برخه داسې راوړې ده: "کور د ده وران شه چې د ده دمخه څه ورانی، ودانی په جهان شی".

ما (هوتک) ته داسې ایسي چې د کابل چاپ دستارنامې ترتيبوونکي دې د (يي = وي) په پوهېدلو کې ستونزې درلودې.

د پښتو په نورو لهجو کې هم د (واو) واول په (ی) سره اوړي.

(مور) د (مېر) په شکل وايي. په لوېديځه لهجه کې په (ی) سره د (واو) د اوښتلو دوه مثاله زما په ستر ګه سوي دي، چې يو ئې همدا پورتنی (يي = وي) او بل ئې (څليرويشت = څلورويشت) دئ.

د شمس الدين کاکړ په دا لاندې بيت کې (يي = وي) معنا ښندي:

زړه د کبر پـــه فـاقه سره مـړ بنه يي
چې خوړه خوله مي د يار و خوا ته نه شوه
(۱۱۹- مخ).

"و خوا ته" دلته د (اشتها) په معنا راغلې ده. "ډوډۍ مي و خوا ته نه کېږي" يعني اشتها مي نسته، ډوډۍ نه سم خوړلای.

***

## ۲۲،۲،۲: راغله، وليده، وکړه، کړه (د جمع له پاره):

د کندهار په لهجه کې که د (راغله) کلمه د لام په زور (فتحه) وويل سي د مونث له پاره راځي او که په زوه ره کې وويل

سي د جمع له پاره کارېږي. دا قاعده په کلاسيک ادب کي هم پالل سوې ده. دخوشحال خان ختټک اودده دکورنۍ دشاعرانوپه کلام کي په دغه راز حالاتوکي (راغله) او(راغلل) دواړه موندلای سو. خوشحال خان په سواتنامه کي ويلي دي:

دا سگان رالره **راغله**، زه ئې وينس کړم
په ليده او په راتله ئې په تشويش کړم[۲۰]

(۴۸ – مخ)

هجري وايي:

هغه تللي ياران نه **راغله** لارغه شول
په کاته پې ستړي دوه ليمه شول

(۳۹۱ – مخ)

حميد مومند (وليده) د جمع له پاره راوړې ده.

د دنيا اهلِ دُوَل د زړه په سترگو
واړه **وليده** تر ځان خواروبتر ما

(کليات – ۸ مخ)

د کندهار په لهجه کي (وليده) د جمع له پاره ويل کېږي. "هېر خلگ مي وليده چي چکچکې ئې کولې". په دغه راز حالاتو کي اوس (وليدل) شکل کارېږي.

---

[۲۰] دې بيت د خوشحال خان ختټک په کليات (۹۲۷مخ، دويم چاپ) کي لاس خوړلی دئ او "دا سگان را لره راغلل، زه ئې ويش کړم" ځني جوړ کړی دئ. (ويش) به ئې د (تشويش) قافيې له اسيته اړولی وي او (راغلل) به ئې معياري کړی وي. خو تر دې بيت ئې شلوربيته وړاندي بيا "کړه" فعل د جمع (ملکان، شيخان) له پاره ثبت کړی دئ. که د اوسنۍ قاعدې مراعات په کلاسيک ادب کي روا وي نو دلته ئې هم بايد د (کړه) پر ځای (کړل) راوړی وای. په متونو کي دغه راز لاسوهني د ژېپوهانو ستونزې ورزياتوي.

حمید "کړه" هم له کندهارۍ لهجې سره سم د جمع له پاره کاروي:

ما په یار پسې لیمه په ژړا سپین **کړه**
یار په ما پسې کوي توره بلا
(۲۲ – مخ)

"لیمه" دلته جمع ده او له ننني قاعدې سره سم باید په تېره زمانه کې د "کړل" فعل ورته راسي. یا:

په یوه نظر ئې هر څه له ما لوټ **کړه**
مه شه ساز په چا د ترکو روایت
(کلیات – ۵۱ مخ)

دلته بیا د (هر څه) له پاره، چې جمع حالت دئ، د (کړه) فعل راغلی دئ.

میرزاخان انصاري هم (کړه) د جمع له پاره راوړي:

سالکان ئې د هجران په تاو پاخه **کړه**
اوس ئې ګوره استعداد ورته د لودی
(۲۰۷ – مخ)

اشرف خان هجري هم (کړه) د جمع له پاره کاروي:

د ژړا سیل مې جوړه کسي لاهو **کړه**
کله زړه د هر سوړ شه لا شدت کا
(۲۷۸ – مخ)

"جوړه کسي" جمع ده او فعل ئې ورته "کړه" راوړی دئ.
خوشحال خان په یوه بسته غزله (دوولس بیته) کې (کړه) د جمع له پاره راوړي دي خو د کاتبانو او مرتبینو تصرف او لاسوهني له هغه څخه (کړل) جوړ کړي. غزل داسې ده:

ما په ننګ د پښتانه ځوانان قربان **کړل**
بیا مي غوره غوره جمع ښه ځوانان **کړل**
(کلیات – ۱۱۱مخ)

دې غزلي ته ئې په حاشیه کي کښلي دي:

"دغه نظم په چاپي نسخو کي د (ه) په پټي کي خپور شوی دی او په ټولو نسخو کې د (کړل) پر ځای (کړه) راغلی دئ". (پر "کړه" باندي تاکید زما دئ. هوتک) څوک اریان پاته سي چي د مرتِب له پاره به د دغه راز لاسوهني مجوز څه وي؟ چي "ټولو نسخو" (کړه) ثبت کړی وي او دی ئې (کړل) کوي*!

کندهاری شاعر میرزا حنان بارکزي د (کړه) فعل د (مارانو) له پاره داسي راوړی دئ:

زما و مرګ ته دي د زلفو ماران جوړ **کړه**
د مېړي په مـرګ حشر څـه کـوي څـوک
(۷۹ – مخ)

حشر دلته د (اشر) په معنا کار سوی دئ.

میرزا خان انصاري (ټوله) د جمع له پاره کاروي نه (ټول).

دا څه وخت شـو د هولي
هندوان **ټوله** شو ولولي

.............

نارینـه چي دېوانـه شـوه
هـسي ښـځي دي بهـولي
(۲۵۱ – مخ)

---

* "کړه" د "کړل" مخفف شکل دئ – د لام /ل/ په اخفاء سره ترمخنی زورکی پاته

(شوه) د (واو) په زوه ره کي د جمع فعل دئ. د کندهار په لهجه کي هم (نارينه) د جمع په حالت کي راتلای سي. په ختيځه لهجه کي اوس د (نرينه) ليکني د رواجولو هڅه روانه ده[21].

***

**۲،۲، ۲۳: درلود:**

عبدالقادر خان د خپل پلار خوشحال خان ختک په باب وايي:

خپل پردي له ده همه شکر گذارو
خاموشي حلم ئې ډير **درلود** بردبارو
(۴۶۲ – مخ)

د پښتو په ختيځه لهجه کي د "درلودل" پر ځای "لرل" زيات کارېږي او د "درلود" پر ځای په دغه شان حالاتو کي "لاره" ويل کېږي.

***

**۲، ۲، ۲۴: گډېدل:**

گډېدل مصدر د پښتو په نورو لهجو کي د "نڅېدلو، رقصېدلو" په معنا کارېږي. "گډا" ئې اسم دئ. د کندهار په لهجه کی د (خبرو کولو) په معنا ويل کېږي په تېره بيا د بېځايه خبرو کولو په معنا ډېر راځي. په همدې معنا ئې خوشحال خان هم کاروي:

لږ وارو ما ته راکړه چه زه هم درته وو وايم
څو ته هسې **گډيږې** په خبرو نامحکم
(ارمغان – ۶۹ مخ)

مولوي عبدالغفار بريالی وايي:

---

(۲۱) د دغه رازالفانو د حذف مثالونه د ډاکټر پالوال صاحب د کتاب "معياري پښتو" په ۱۱۴ مخ کی وگورئ.

"بریالیــه" عبث مــه ورتــه **گـــډېږه**

کانــه نــه اروي د بــل لــه قــاله هــیڅ

(اهار – ۳۲ مخ)

د کندهار گډېدل د گړېدل د /ړ/ په /ډ/ سره اووښتنه ده.

***

**۲،۲، ۲۵: چپ:**

(د لومړي توري په زوه ره کي) د خاموش، پټه خوله په معنا د لوېدیځي لهجې ژوندی لغت دئ. د پښتو نوري لهجې ئې (چوپ) تلفظ کوي.

حمید وایي:

د داغلي زړه لــه آهــه شم څه شان **چپ**

د چمن پــه گلـــو، نــه وي بلبلان **چپ**

(۴۵ – مخ)

د کندهار په لهجه کي د ډېري خاموشۍ له پاره "چپه چپایي" لغت کارېږي چي په نورو لهجو کي ئې "چوپه چوپتیا" بولي.

***

**۲،۲، ۲۶: رانیول = خریدن:**

دا لغت د نورو لهجو ویونکي (راونیول) لیکي او وایي، چي معنا ئې "گرفتار کردن" راځي. (رانیول) په کندهار کي د (پېرودل) په معنا عمومي رواج لري او په کلاسیک ادب کي ئې هم د کارولو مثالونه سته. میرزا خان ویلي دي:

مخ په مخ ئې واړه رنگ لــه رنگه ویوست

په سایه ئې دولــت **رانیــو** لــه هــمایه

(۱۰۴ – مخ)

**یا:**

نارینه وو میراث **رانیوه** له ښځو
له ناکامه د دوی هم ورسره سازه
(۱۴۴ – مخ)

***

**۲،۲، ۲۷: لو (لویه):**

(لو) د (لوی) ښځینه شکل دئ، چي په لوېدیځه لهجه کي عمومیت لري. لو نجلۍ، لو لار، لو کوڅه، لو واله، او نور ئې مثالونه دي. د کندهار ښار په شمال کي یو کانال بهېږي چي د کندهار خلک ئې (لوواله) بولي. د دې ولې شا پاله ته د استوګني لو مېنه پرته ده، چي د ښاروالۍ یوه ناحیه او په رسمي اسنادو کي د (لو واله) په نامه قیدده. (لو) ښځینه صفت په نورو لهجو کي (لویه) دئ.

د میرزاخان انصاري په دېوان کي د "لو" صفت ما په دغه شکل یو ځای لوستی دئ، نه پوهېږم چي دا به دده خپل وینګ وو که د کاتب یا مرتب؟ دی وایي:

د کامل یوه بېحده **لو** رڼا شوه
د باور لاس ئې په هر لوري دراز دی
(۲۰۳ – مخ)

په پورته بیت کي که (لویه رڼا) ولیکل سي، د بیت وزن په ورانېږي.

***

# دریم فصل

## ۳، ۱: د وینګ (تلفظ) او وراشو مشترکات:

**احتیاط:**

په پښتو کې دخیل لغت دئ. عربي تلفظ درې ځپې دئ خو په پښتو کې ئې وینګ دوې ځپې سوی دئ.

په روښاني ادب کې د (احتیاط) ویی د (هتیات) په شکل راغلی دئ خو ځپې ئې بیا هم دوې دي. میرزا خان وایي:

ترو له شرکه دي **هتیات** شي
هر کلام دي سلامت کا
(۲۴ – مخ)

**یا:**

ډېر دانا په **هستیاتي** ځي
چې دا ډېر باریک مزل دئ
(۳۷ – مخ)

***

**ارت:**

**خوشحال خان دا لغت دوې ځپې کاروي:**

کښېنې په خلوت کې شیخه! سود ئې راته وایه
ولې په (پر) خپل ځان دا هسې **ارت** جهان تنګ کړې
(کلیات – ۱/ ۴۴۹مخ)

په "په" سره یوه مانا، او په "پر" سره بله مانا ورکوي چې د خوشحال هم دغه مراد ده.

میرزا خان انصاري ویلي دي:

د مجاز د کاروانونو پرې ګذر دئ
لکه **ارته** بېرېه یا جهازه
(۱۴۴ – مخ)

د کندهار په لهجه کي دا لغت دوې څېپې ویل کېږي. پوهاند زیار صاحب هم دا خبره تاییدوي (وګ: د خوشال ادبي پښتو – ۳۱ مخ).

حاجي ولي محمد مخلص کندهاری وایي:

که کرهني ته هر څو پټي لرې
او بهېږي باندي **ارتي** ولې
و بې نه خورې ګټه څو چې ئې په زیار
له سترېا پر ځان رانه ولې خولې
(۲۰۸ – مخ)

نوري لهجې ئې یوه څپه وایي. د رحمان بابا په دېوان کي دا کلمه یوه څپه راغلې ده:

پس له مرګه که څوک **آرت** غواړي خپل ګور
که حق وایم هُمره آرت دي بویه کور
(۱۴۴ – مخ)

حمید مومند هم (ارت) دوې څېپې راوړی دئ:

په مهجور **ارت** جهان هجر زندان کا
ځکه هسې پکې تنګ پاڅي تنګ کښېني
(درومرجان – ۱۱۸مخ)

په کليات (۳۱۲مخ) او د عبدالحميد مومند ديوان (۳۹۰مخ) کي "په مهجورو ارت..." راغلی دئ، چي په دغه راز ثبت کي باید (ارت) يوه ځپه ولوستل سي. دا راز لوستنه د کلاسيک ادب ملاتړ نه لري.

په ليکلاربود (۵۳ مخ) کي د (اَرَت) ارخاييک وينګ او د لوېديځ ګړدود تلفظ په پام کي نه دئ نيول سوی او فتوا پر "يو ځپيز" تلفظ ورکول سوې ده. د (ولي؟) جواب ئې مسکوت پاته دئ.

***

**اَړَخ:**

په لويديځه لهجه کي د(اړخ) کلمه دوې ځپې ويل کېږي او نوري لهجې ئې يوه ځپه تلفظ کوي. د خوشحال خان په کلام کي دا لغت دوه ځپيز کار سوی دئ. پوهاند دوکتور زيار صاحب هم د خان په کلام کي د دغه ويي دوه ځپيز استعمال تاييدوي (د خوشال ادبي پښتو- ۳۱مخ)

***

**اختيار (دوې ځپې):**

په کلاسيک ادب کي (اختيار) دوې ځپې ثبت سوی دئ. خوشحال خان وايي:

و بلا ته د **اختيار** توره په لاس کې
و قضا و ته تسليم په شان د مړه يم
(کليات – ۱۲۵مخ کابل)

**اشرف خان هجري وايي:**

تل دي لاف د پت کاوه پخپل وطن کښې
د کن څه دی که رښتيا کوې **اختيار**
(دېوان – ۴۶مخ)

**ميرزا خان انصاري ويلي دي:**

**اختيار** هر چي ئې ويشلی
ځای ځای سود، چرته زلل و
(۳۶ – مخ)

**يا:**

په **اختيار** ئې بې اختياره چاري کېږي
د نظر حساب ئې نشته چي حصار شي
(۳۸ – مخ)

**په يو بيت کي ئې (اختيار) درې څپې راوړی دئ (۱۸۹ مخ) خو تر هغه دوه بيته وروسته ئې بيا بير ته دوه څپه ييزه کار کړی دئ. له دې څخه څوک ويلای سي چي د لومړي درې څپه ييز (اختيار) په ثبت کي وراني پېښ دئ.**

**د کندهار په لهجه کي اختيار دوې څپې ويل کېږي. مولوي عبدالغفار بريالي وايي:**

کم قوته خلک ځان ځني جار باسي
ما په خپل **اختيار** په شا کړ غر د شعر
(اهار – ۴۴مخ)

***

**اعتبار (درې څپې):**

**اعتبار کلمه پښتو ته له عربي څخه راغلې ده او عربي وينګ**

ئې په درو څپو سره کیږي. دا کلمه د کندهار په لهجه کې هم درې څپې ویل کیږي او د پښتو په ختیځو لهجو کې د (اِتبار) په شکل دوې څپې تلفظ کوي. اردو ژبې ئې هم دوې څپې وایي.

حمید مومند "اعتبار" درې څپې کاروي:

د غــــمجنو پــــه آهِ آتــــشبار ږو
د بې غمـو د خوښـی پـه **اعتبـار** ږو
(کلیات – ۴۳۰ مخ)

په (۴۲۶ مخ) چې (اعتبار) دوې څپې راوړه سوی دئ، ما ته د حمید خپل انتخاب نه ایسي، بلکې د کاتب یا مرتب لاس پکښې دخیل دئ.

پـرده در د عیب جـویی چـې پـرده دار شي
پلار له زویه بې **اعتبار**(ه)، زوی له پلار شي

دلته وراني د لومړي "زوی" په کلمه کې پېښ دئ. اصل نیم بیتی باید داسي وي: "پلار له زوی بې اعتباره، زوی له پلار شي" په دې ډول د "اعتبار" کلمه د حمید د نورو شعرو په شان، درې څپې راځي او همدا ئې صحیح تلفظ دئ. زما د کتبخانې "نیرنگ عشق" په خطي نسخه (۶۹ مخ) کې دا نیم بیتی هغه راز راغلی دئ، لکه ما چې پورته کښلی دئ او (اعتبار) درې څپې کار سوی دئ. "زویه" کلمه په پښتو ادب کې د "اولادو" په معنا راغلې ده. خوشحال خان ویلي دي:

واړه د ېـرش **زویـه** لـرمه
اوس حاضـر پـه دا آوان
(ارمغان – ۳۲ مخ)

(اعتبار) کلمه میرزاخان انصاري هم درې څپې کاروي:

ابوبکر (رض) ئې په صدق زورور دی
په دا صدق بښــه باور او **اعتبار** شي
(۳۹ – مخ)

***

**بزرګي Bu-zar-gi:**

د عبدالقادر خان په کلام کې دا لغت دوې څپې دئ. د لوېدیځې لهجې ویونکي ئې هم دوې څپې وایي. په ختیځه لهجه کې درې څپې ویل کېږي.

د **بزرګیه** پـه مقام بـه هـاله کښېنې
کـه دورکـړو د مـړانې پـه وزر ځـې
(۳۲۵ – مخ)

په ختیځو لهجو کې (بزرګي) د لومړي توري په زور (فتحه) باندي درې څپې تلفظ کېږي.

***

**بانه (بهانه):**

دا لغت په کلاسیک ادب کې دوې څپې موندلای سو.

حمید وایي:

که ئې څوک د مرګ **بانه** پوښتي له خلقه
د "حمید" د یار له غـــمه سرپه ګور شه
(کلیات – ۲۲۸ مخ)

پوهاند دوکتور زیار صاحب د خوشال ادبي پښتو (۲۳مخ) کې لیکي، چې خوشحال خان دا لغت د عربي تلفظ پر خلاف "دوه څپیزوي".

د میرزا خان انصاري په دېوان کې (بانه) او (بهنه) دوه شکله

راغلي دي خو دواړه شکله ئې دوې څپې کار کړي دي.

که **بهنه** ئې د باغبان تربیت نـه وای
دغه دومري فیض به چا ووړ له پالېزه
(۱۴۸ - مخ)

**میرزا حنان بارکزی وایي:**

خوبرویان په هنر زړه لـه خلکو یوسي
د ملهم په **بانه** کښېږدي د الم داغ
(۷۵ - مخ)

**شمس الدین کاکړ ویلي دي:**

چي دا هسي مي د قتل **بهانه** غواړي
نور تر څو به راته درنګ کړي هغه یار
(۵۲ - مخ)

**دلته که څه هم (بانه) د (بهانه) په شکل ثبت ده خو وینګ ئې باید دوې څپې وي.**

***

**بیابان:**

**په کندهاري لهجه کي "بیابان" دوې څپې ویل کیږي.**
**خوشحال خان ئې هم دوې څپې کاروي:**

زر و مـا تـه هسې خوار وو
لـکه خـاورې د **بیابان**
(ارمغان - ۳۲ مخ)

**میرزا حنان بارکزی وایي:**

ستا لـه غمه څخه ورک پر **بیابان** شـه یم
چي پر کور مي روغ عالم ګل په عذاب کړ
(۶۳ - مخ)

**مولوي عبدالغفار بريالي ويلي دي:**

چي لاله رنګه پر بتهي **بيابان** نه سي
کله وړای سي د شهرت پر ځيګر خال مفت
(اهار - ۱۴مخ)

***

**توان:**

**په لوېديځه لهجه کي دا لغت د لومړي توري په سکون يوه څپه تلفظ کېږي. د کندهار په پښتنو کي دا متل ډېر عام دئ، چي وايي:**

**"غر به در په شاکړم، توان به در پيدا کړم"**

**کامګار خټک دا لغت يوه څپه کار کړی دئ:**

ستا دواړه زلفينو **توان** پرې نه ښو په ناتوان کې
هيڅ ويلی نه شم چې دې مخ دی په ميان کې
(۱۴۴ - مخ)

**ميرزا حنان بارکزی وايي:**

د عاشق بې ياره کله شي **توان** يو دم
پتنګ کله له ډيوې ساتي ځان يو دم
(۸۳- مخ)

**نوري لهجې "توان" د لومړي توري په زور (فتحه) دوې څپې وايي.**

**په کندهار کي "توانو" د نارينه وو د نامه په توګه ايښوول کېږي. د ډيورنډ پر کرښه باندي سپين بولدک ته نزدې د "حاجي توانو" په نامه يو کلی ستته.**

***

**توانا:**

**يوه څپه:**

**ميرزا خان انصاري وايي:**

حياتي ئې بې نقصانه
هم په هره چار **توانا** ده
(۳۱ – مخ)

**د يوې ځپې بل مثال:**

له اوله ئې خپله روح په ده کښې پوکه
په دغه قوت **توانا** و، هم عليم شو
(۳۳ – مخ)

**دغه راز:**

**توانايي** مې په هر چا کښې
دانايي د هر يوه يم
(۸۳ – مخ)

***

**پرېشان:**

**په لوېديځه لهجه کې د دې لغت وينګ د لومړي توري په سکون، دوې ځپې دئ. خوشحال خان خټک او نور کلاسيک شاعران ئې هم دوې ځپې کاروي.**

**خوشحال وايي:**

تورې زلفينې پر مخ شان شان لرې
اوربل په وچولي پرېشان **پرېشان** لرې
د نورو کوډو حاجت هيڅ نشته
د سترګو سحر جهان جهان لرې
**(ارمغان – ۱۲۹مخ)**

**يا:**

**پریشان** په ځان کښې په ډېر حیرت یم
څه وم دا څه شوم په څه حالت یم
چې تل مې ځای شول غرونه رغونه
زه دا په چا پسې مجنون صفت یم
(ارمغان –۱۵۹ مخ)

***

**پسرلی (سپرلی):**

په کلاسیک ادب کي دا لغتونه له کندهارۍ لهجې سره سم دوې څپې راغلي دي (زیارصاحب هم اشاره ورته کړې ده - ۲۹مخ) ختیځه لهجه ئې ۳ څپې وایي. سپرلی دوه سپوږه، او پسرلی هم دوه او هم درې سپوږه لري، پُسرلی، اصلي حالت په مغیره حالت کښي دوه سپوږۍ کېږي.

خوشحال وایي:

تمام ژمی ئې ساته په تماغه کښې
په هنر کړه په **پسرلي** د بازدارۍ
(ارمغان – ۱۰۱مخ)

یابل ځای وایي:

د **پسرلي** گلونه څه دي چې ئې ستایم
تر گلونو چې زیبا ده هغه ته ئې
(۴۷۵ – مخ)

(پسرلی) په ختیځه لهجه کي درې څپې (پَسَرلی) ویل کېږي.

***

**پښیمان:**

پښیمان کلمه په لویدیځ گردود کي دوې څپې او (پښیماني)

مغیره شکل ئې ځلور ځپې ویل کیږي. په کلاسیک ادب کې د لویدیځ ګرځ دود قاعده مراعات سوې ده.

**خوشحال خان وایي:**

چې نادانـــان دي چې فاسـقان دي
یـــو دم کار وکا بیا زر **پښېمان** دي
چې ئې په کار کښې پښېماني نشته
یـا عـــاقلان دي یـا صالـحان دي

(ارمغان – ۲۳۰ مخ)

**عبدالقادر خان وایي:**

نن ئې وې چې سبا راشه خوله به درکړم
مددګار شې بخته! بیا مه شه **پښېمان**

(۱۳۰ – مخ)

**حمید وایي:**

زر په زر به ئې سیاهي د خط **پښېمان** کا
دا د مخ پـــه روښنایي باندې مـــغرور

(کلیات – ۷۳ مخ)

**میرزا خان وایي:**

نتیجه به **پښېماني** له دې ځای یوسي
که پـــه مینه همنـشین شي له بـدانه

(۱۸۶ – مخ)

**کامګار ختک وایي:**

د وصـال وعـــده دې کـــړې وه محـکمه
نه پوهېږم چې بیا کوم یوه **پښېمان** کړې

(۱۳۵ – مخ)

**بل ځای وایي:**

زر پښېمان په خپلو بدو شه رقيبه
يار مې ولې له راتلو **پښېمانه** وې
(۱۵۴ – مخ)

**شمس الدين کاکړ هم (پښېمان) ويی هر ځای دوه ځپيز کار کړی دئ. ده ويلي دي:**

يار دي قتل لره راغی "شمس الدينه"
خدای دې نه کاندي پر دا نيکي **پښېمان**
(۹۴ – مخ)

**مولوي بريالی وايي:**

چې ليلا کړه د توبې دروازه بنده
د مجنون په مذهب کفر **پښېماني** ده
(اهار – ۱۰۹ مخ)

(پښېمان) کلمه په ختيځو لهجو کي د لومړي توري په زور (فتحه) درې ځپې ويل کېږي.

***

**حرص:**

په ځينو لهجو کي (حرص) د لومړي توري په زېر (کسره) او د دوهم په زور (فتحه)، دوې ځپې تلفظ کېږي. ځيني نوري لهجې ئې بيا يوه ځپه وايي. د کندهار په لهجه کي يې دواړه رازه وينګ سته، خو البته د جملې په ترکيب پوري اړه لري. په کلاسيک ادب په تېره بيا د خوشحال خان د کورنۍ په شعر کي هم دوې ځپې کار سوی دئ.

د زړه ښهر مې په ځای د قناعت دی
په ناحقه مې **حرص** پکښې امیر کړ
(مرغلرې – ۱۳۶ مخ)

**یا بل ځای وایي:**

قدیمي د پښتنو جهل خرتوب ؤ
اوس په طمعه، په **حرص** د رومې له میانه
(کلیات – ۲۵۳ مخ، کابل)

**هجري وایي:**

د ابلیس خبیث **حرص** درته تعین دی
پټ سپاهي کړه د ځان د خیره په صلاح
(۳۱۶ – مخ)

**عبدالقادر خان وایي:**

د **حرص** په ځنځیر سپي غوندې ځکاوه شي
زور قوت که زیات تر شېر لري طامعه
(۲۱۱ – مخ)

**یا:**

د **حرص** د سپي غاښ مات په قناعت شوی
په زنځیر ئې بیا د صبر وو تړلی
(۲۵۱ – مخ)

**حمید وایي:**

اضطراب مې د **حرص** کړې له زړه لېرې
قناعت قوي لنگر دې جهاز را
(کلیات – ۱ مخ)

**یا:**

لـه صحبته ئې کهښت د **حرص** خېژي
دي پـــــه اصـــل کې پمن اهـــل دنيا
(کليات –۵ مخ)

د کليات په ۱۵ مخ کي "حرص" يوه څپه کار سوی دئ، سبب ئې دانه دئ چي حميد ګويا دا لغت يوه څپه وايه، بلکي دا دئ چي د نيم بيتي رانقلوونکي "حرص" يوه څپه وايه او له دې خاطره ئې تر هغه وړاندي فعل دوې څپې کړی او د نيم بيتي وزن ئې په پوره کړی دئ.

ناسم ثبت ئې:

شوخ بې شرم کړلې **حرص** تر هسې حده
چې نه شرم کړې لـــه خـــدايه نه پروا

په دې بيت خو "حرص" بايد يوه څپه وويل سي.

سم ثبت ئې:

شوخ بې شرمه کړې **حرص** تر هسې حده
چې نـه شرم کړې لـــه خـــدايه نـه پروا

په دې بيت کي بيا "حرص" دوې څپې راغلی دئ. زه دا دوهم شکل ځکه سم بولم چي په يوه بيت کي د يوه فعل دوه رازه ثبته (کړلې، کړې) د حميد له "موشګافی" سره سر نه خوري او هرومرو بايد په دې دوو شکلو کي يو د کاتب لاسوهنه وي. د دغه استدلال پر بنسټ بايد د "کړلې" شکل د کاتب تصرف وګڼل سي.

د شمس الدين کاکړ په دېوان (د پښتوټولني چاپ) کي هم دا کانه سوې ده او له بده مرغه په نوي چاپ (۱۳۸۸ش) کي هم

که صورت ئې وي میړې غوندي ناتوانه
هم له **حرصه** پر شا اخلي بار د عشق
(۷۳ – مخ)

که بیت په همدې شکل ومنو، نو رشتیا هم (حرص) باید یوه څپه ولوستل سي. خو په دوهم نیم بیتي کي د (هم) کلمه د ناقل لاسوهنه ده چي له دوه څپیز (حرص) څخه ئې یو څپیز جوړ کړی دئ. زه دا خبره په دې استناد کوم چي د شمس الدین په کلام کي نور ځایونه (حرص) دوه څپیز راغلی دئ او تاسي به ئې مثال د همدې بحث په پای کي ولولی.

میرزا خان انصاري هم "حرص" هر کله دوې څپې راوړي:

د **حرص** ځانګونه مات کړه
مخالف شه و هواته
(۱۱۲ – مخ)

یا:

قناعت به دي هاله په زړه قرار شي
چي یک لخته **حرص** رانسې له نسه
(۱۵۰ – مخ)

زه د ده په دېوان (د کابل چاپ) کي پر یوه ځای باندي پېښ سوی یم چي دا لغت ئې یوه څپه کار کړی دئ خو هغه بیت بیا د مناقشې وړ دئ. دی وایي:

د زړګي پر کښت ئې **حرص** د توقع دی
سیراب کېږي لـه خـریفه شی ربیعه
(۱۶۱ – مخ)

دلته رشتیا هم که (حرص) دوې څپې وویل سي، د بیت وزن

ته تاوان رسوي خو د همېش خلیل مرتبه دېوان مرزا خان انصاري (۱۰۹مخ) کي بیا دا بیت داسي دئ:

د زړګي په کښت ئې **حرص** توقع دی
سیراب کېږي له خریفه له ربیعه[1]

دلته وینو چي (حرص) که دوې څپې وویل سي، په شعر کي ورانی نه پېښېږي او د (حرص) د دوه څپیز توب خبره پیاوړې کوي.

کامګار خټک هم (حرص) دوې څپې راوړی دئ:

د **حرص** له بده رنځه به فارغ شي
که څوک صبر دا زل په اول وېش که
(۱۱۵- مخ)

شمس الدین کاکړ هم (حرص) دوې څپې راوړي:

ډېر نعمت د دنیا لږ په **حرص** بولي
په صرفه صرفه او به چښی له دریا
(۳۳ – مخ)

***

ږمنځ (ږمونځ) یوه څپه:

د کندهار په لهجه کي یوه څپه او په ځینو نورو لهجو کي دوې څپې ویل کېږي. خوشحال خان یوه څپه کاروي (د پېښور کلیات – ۱۸۲مخ، د "خوشال ادبي پښتو" د ۳۲ مخ په حواله). پوهاند زیار صاحب ئې دغه وینګ د کرلاڼي ګړدود وینګ بولي. ګویا کرلاڼی وینګ او کندهاري وینګ سره یو راز دئ.

---

[1] زما په خطي نسخه دوهم نیم بیتی داسي دئ:
"سیراب کېږي له خریفه له ربیعه"

**عبدالحمید مومند وایي:**

زړه مې له غیرته په کوګل دننه دود شي
**ږمنځ** چې دې بې فهمه وهي ګوتې په کاکل
(کلیات – ۱۳۴مخ)

**یا بل ځای ئې ویلي دي:**

که څښتن ئې په خپل فضل **ږمنځ** نه کا
ښې ښې ږیرې به شي سپکې لکه درب
(۳۴ – مخ)

**دلته "ږمنځ" دوې څپې ویل کېدلای سي خو زما په فکر دلته د (ږیرې) کلمه د جمع په حالت کي ده او فعل ئې باید (ږمنځي) وي. په دې صورت کي نو (ږمنځ) باید یوه څپه تلفظ سي. په دې ډول:**

که څښتن ئې په خپل فضل **ږمنځي** نه کا
ښې ښې ږیرې بــه شي سپکې لکه درب

**د اروانباد رښتین صاحب په لاس تهیه سوي دېوان کي ئې دغه بیت ته په حاشیه کي کښلي دي: "په چاپي نسخه کښې د (ږمنځ) په ځای (درنې) راغلي دي" دلته وینو چي د (ښې ښې ږیري) له پاره (درنې) فعل د جمع په شکل راغلی دئ نو له همدې اسیته باید د (ږمنځول) فعل هم د جمع په بڼه (ږمنځې) راسي.**

**میرزا خان انصاري وایي:**

د میرزا خبري **ږمنځي** د معنا دي
چي غونچه ملوکي زلفي پرې تار تار کړم
(۸۱ – مخ)

**مولوي بریالی وایي:**

چي په عشق کي ځان تالا کې لکه **ږمونځ**
عاقبت به ځان رسوا کې لکه **ږمونځ**
(اهاړ – ۳۱مخ)

دلته (کې = کړې) دئ خو د (کول) له مصدره اخیستل سوې کلمه ده.

***

**سُجِدَه – درې څپې:**

د کندهار په لهجه کي (سِجده) زیاتره درې څپې (سُجِدَه) تلفظ کیږي. په کلاسیک ادب کي زیاتره دوې څپې کار سوې ده، خو د میرزاخان انصاري په کلام کي یو ځای درې څپې کار سوې ده، چي دا راز وینګ ئې له لویدیځ ګړدود سره ورته دئ.

یک جنس واړو **سجده** و ده ته وکړه
او شیطان ئې امر نه مانه رجیم شو
(۳۴ – مخ)

د همیش خلیل په مرتبه دیوان کي دا غزل د (ش) په ردیف کي راغلې ده:

یک جنس واړو **سجده** و ده ته او کړه
او شیطان ئې امر نه مانه رجیم شَ
(۸۷ – مخ)

(سجده) کلمه دلته هم درې څپیزه کار سوې ده.

دمیرزاحنان بارکزي په کلام کي درې څپیزه (سجده) داسي لولو:

**سجدې** د شکرانې کړم بسمل طوره
چي د زړه غوښې مي توی شي په منګول ستا
(۳۹ – مخ)

**یا:**

سر و پښو ته **سجده** زلفي په دا کړه
د هندوانو وي له اوره سره کار
(۵۶ – مخ)

***

**سکندر:**

**دا نوم د خوشحال د کورنۍ په شعر او د پښتو په لویدیځه لهجه دواړو کې د لومړي توري په سکون دوې څپې ویل کېږي. نوري لهجې ئې درې څپې وايي. خوشحال خان ویلي دي:**

نه بهرام وونه ئې گور وو
نه **سکندر** وو، نه دارا
(ارمغان – ۴۶مخ)

**عبدالقادر خان وايي:**

په **سکندر** او په دارا ئې وکړې چارې
په شداد او په نمرود ئې وکړې لا
(۳۲– مخ)

**دغه راز ۲۶۸ مخ او نور.**

**حمید مومند وايي:**

که هر څو ئې جنگ جدل په دنیا وکا
ځنې یو نه وړه **سکندر** و دارا هیڅ
(کلیات – ۶۲مخ)

**په ۷۵مخ کې چې "سکندر" درې څپې راغلی دئ، هلته بیت سم نه دئ لوستل سوی.**

**ناسمه لوستنه ئې: "ونړاوه سد د سکندر څو څو ما څو څو"**

(سکندر – ۳ څپې)

سمه لوستنه ئې: "ونړاوه سد د سکندر ځوځو و ما ځوځو"

(سکندر – ۲ څپې). بل ځای:

څوک ئې څه نو مي **سکندر** که قلندر ئې
د کوم گل و نار بلبل و سمندر ئې
(۴۷۲ – مخ)

میرزا خان انصاري ویلي دي:

مهتر خضر و ما هسي اوبه راکړې
د **سکندر** ملکونه وینم بې مرآته
(۱۱۰ – مخ)

یا:

د **سکندر** د آیینې ننداره چا کړه
دا جهان په جام کښي چا لیده بې جمه
(۱۸۲– مخ)

د میرزا حنان بارکزي په کلام کي هم پر دوه څپیز (سکندر) باندي پېښېږو:

زما د زړه **سکندر** به کله ځني گرزي
چي ئې خط شو راته خضر خوله حیات
(۴۶ – مخ)

د بلوچستان پښتو اکېډمی چاپ دېوان (۵۹مخ) کي هم د (سکندر) کلمه په همدې بیت کي دوې څپې ثبت ده خو د حنان بارکزي د دېوان د لومړي چاپ مُدوِن چي د (سکندر) کلمه غالباً درې څپیزه ویله، په لومړي نیم بیتي کي لاس وهلی دئ او (سکندر) ئې درې څپیز کړی دئ:

**سکندر** د زړه مي کله څني ګرزي
چي دي خط شو راته خضر خوله حیات

(۱۴ – مخ)

**د شمس الدین کاکړ په کلام کي (سکندر) دوې څپې کار سوی دئ:**

معلومېږي سنګدلي د خوبرویانو
آئینه که د **سکندر** دا حکایات

(۴۱ – مخ)

***

**سلیمان:**

**دا نوم په کلاسیک ادب او لوېدیځ ګړدود کي د لومړي توري په سکون او د دوهم په زېر (کسره) دوې څپې (سلېمان) ویل کېږي. خو په نورو لهجو کي د لومړي توري په پېښ (ضمه) او د دوهم په زور (فتحه) درې څپې (سُلَیمان) تلفظ کېږي. کامګار خټک وایي:**

کله ګل په هوار سور لکه **سلېمان** شو
چې بلبل په نوا سر لکه داود شو

(۷۹ – مخ)

**یا:**

د زړه تخت دې ځکه ونیوه دیوانو
چې دې ګوتې د **سلېمان** لاړه له لاسه

(۹۹ – مخ)

***

**شلومبې:**

**په کلاسیک ادب کي (شلومبې) زیاتره دوې څپې کار سوي**

دي.

**خوشحال وایي:**

که د غواد بزو **شلومبې** خورې زیان ئې نشته
اشـــتها د ســـرې زیاتـــه کـــا پـــه خـــور

(ارمغان – ۵۷مخ)

په کندهارۍ لهجه کي هم (شلومبې) دوې څپې ویل کېږي.
پوهاند زیار صاحب هم دا خبره تاییدوي (د خوشال ادبي پښتو - ۳۶مخ). په نورو لهجو کي (شلومبې) درې څپې تلفظ کېږي او شین ته زور (فتحه) ورکوي.

(وګ: څلرم فصل د "شلومبې" لغت).

***

**ښایسته:**

د ختکو د کورنۍ په اشعارو کي "ښایسته" درې څپې راغلی دئ او د لوېدیځې لهجې تلفظ ئې هم درې څپې دئ*.

**خوشحال خان وایي:**

**ښایسته** د کندهار د چـا پـه یـاد دي
پـه دا حسن ئې بنده واړه کـشمیر کړ

(۷۶ – مخ)

**عبدالقادر خان ویلي دي:**

په راتله ئې **ښایسته** د مزکې مخ (شو)
په دا شان څوک په زمـین راغلی نه دی

(۲۶۹ – مخ)

**عبدالرحیم هوتک وایي :**

---

* په ځینو نورو لهجو کښي دوه سپونۍ، ښېسـ – ته، ویل کېږي (ع. پالوال).

**ښایسته** کندهار د ډېره ډېر یاد ومه
نه هېرېږي که هر څو ئې هېرومه

***

**عَیَب:**

په کلاسیک ادب او لوېدیځه لهجه کې د لومړي او دوهم توري په زور (فتحه) دوې څپې تلفظ کېږي. په ختیځو لهجو کې (عیب) یوه څپه ویل کېږي. اردو تلفظ ئې هم یوه څپه دئ*.

**حمید وایي:**

مه کړه زار د نو خاسته حسن له جوره
**عیب** نه ده غلطي د نوآموز
(۸۵ – مخ)

***

**ناتوان – دوې څپې:**

**حمید ویلي دي:**

په غرور د توان تېرې په **ناتوان** مه کړه
چې د منه تو له سپکېږي په سېر گوره
(کلیات – ۲۱۷مخ)

***

**مراد – یوه څپه:**

**(د لومړي توري په سکون)**

**حمید ویلي دي:**

بې کرداره گفتار محض سرِ درد دی
مونده نه شي د **مراد** مغز په دا پوچه
(کلیات – ۲۰۰مخ)

---

* موږ ئې هم یو سپوږنۍ Eayb وایو او هم دوه سپوږنۍ (ع. پالوال).

یا:

د **مراد** حسن ځنې ځي پا په رکاب شه
چې ئې پا ځېده د خط غبار لـه مخه

(۲۰۱ – مخ)

**میرزا خان ویلي دي:**

د صورت پـه صفت ولـي غلطیږي
لـه اولـه **مـراد** آواز دی لـه جرسه

(۱۵۰ – مخ)

**د میرزا حنان بارکزي په کلام کي هم (مراد) یوه ځپه لولو:**

لا مـي نـه و **مراد** د وصل پیدا کـړئ
د هجـران د لمبـو دود مـي تـر سر ووت

(۴۹ – مخ)

**شمس الدین کاکړ هم (مراد) یوه ځپه راوړی دئ. دی وایي:**

هر سړی د خپل یار لاس نیسي له **مراده**
خدای زه نن ورځ دغه څرنګه نامراد کړم

(۸۵ – مخ)

***

**مشران او کشران – (درې ځپې):**

**له کندهاری لهجې سره سم درې ځپې وایي. خوشحال خان له خپلو زامنو څخه د شکایت په ترڅ کي ویلي دي:**

**مـشران** ئـې د شـړیه ګنـده پـشم
**کـشران** دي پـه مثـال او مـه حریـر

(ارمغان – ۴۰مخ)

**حمید وایي:**

لـــــري **مشر مشره** بخره **کشر کشره**
برابرنه دی چـــرگ بانگ لـــه مـــلا بانـــگه
(کلیات – ۲۴۱مخ)

نوري لهجې ئې دوې څېپې تلفظ کوي (دوکتور زيار، د خوشحال ادبي پښتو – ۳۳مخ)

***

**۳، ۲ : کاف په قاف اړول:**

د خوشحال په کلام کي زياتره پښتو کافونه په "قاف" سره اوښتي دي. لکه د کلا پر ځای قلا، د چيکړ پر ځای چيقړ او نور.

دا کار په يقين سره د کاتبانو لاسوهنه ده، ځکه خوشحال خان پخپله هم د دغو "قافو" استعمال غندلی دئ. دی چي کله په سوات کي د اخوند درويزه ننگرهاري له پيرو "ميانور"سره د مباحثې جريان بيانوي هورې د ميانور د ناپوهۍ د اثبات له پاره يو دليل دا راوړي چي نوموړي پخپل ليک کي کافونه په قافو اړولي دي:

کتابت ئې لاپـــــخوا و، راتـــه کـښلی
مـــشتمل پـــه جـــــهالت و، ناپـــسندلی
نـه ئې خط، نـه ئې املا، نـه ئې انشا وه
فـضولي ئې خپله کښلې پـــه مـــلا وه
د سلـــــــوک د تـــصوف، وارِه لافـــونه
پـــه امـــلا د کـــاف پـــر ځــای وارِه قافونـــه
(سواتنامه – ۵۰، ۵۱مخونه)

پوهاند زيار صاحب هم په ليکلاربنود (۵۲مخ) کي دغه قافونه "چي په ختيځو گړدودو کي دود لري" د پرديو اغېزه بولي او

وايي چي بايد "معياري ونه ګڼل شي" خو دا چي د خوشحال په کلام کي ئې بيا د کافو دغه اوښتل د "لندې غاړې" د ګرځدود اغېزه بللې ده (د خوشال ادبي پښتو - ۳۵مخ)، د تامل وړخبره ده. د ډاکټر پالوال صاحب په نظر په ختيځه لهجه کي په قافو سره د کافو اړول د "هندی الاصله ژبو اغېزه" ده. نوموړي پر لوېديځه لهجه باندي د پارسي او نورو آريايي ژبو اغېزې ته هم اشاره کړې ده (وګ: معياري پښتو- ۱۱۵، ۱۱۷مخونه)

***

### ۳، ۳ : سره ور ته متل وشمه وراشې:

"د بولاق غوا مندړو بوتله":

هجري وايي:

له دېواره دي سـر پورته کـه (کړ) غلـغل شه
ماوې **غـوا مـندړو بـوته د بـولاق**
(۳۸۰ - مخ)

په کندهار کي هم يوه وراشه سته چي د ډېر غالمغال او ښورماښور په وخت کي ويله کېږي. وايي " د جتانو غلبېل اوبو وړی دئ".

***

### د پېړو په ځای کي:

په پښتنو کي "د موچړو په ځای کي" ، "د کپيو په ځای کي" د کښېنستلو اصطلاح وي د يو چا د اجتماعي موقف د کښته والی ښکارندويي کوي. په کندهار کي د دغه راز مطلب له پاره "د بوټو په ځای کي" وراشه پاې ده. له دې راز متنوعو وراشو څخه د

ژوندانه د وسایلو تغیر و بدلون (پنه، کپی، موچنه، بوټ) ډېر ښه ځرګندېدلای سي.

عبدالقادر خان وایي:

**د پنو په ځای** به ناست وی په مجلس کي
اوس دي ناسته که په غېږ کي د خپل یار شي
(۴۵۰ - مخ)

حمید وایي:

هرچې تا غوندې دلبر ئې په څنګ کښېني
د **پنو په ځای** هغو ته اورنګ کښېني
(کلیات - ۳۱۱مخ)

***

**په پالوده کی غاښ وتل:**

په کندهار کي "په پالوده کي غاښ وتل" اصطلاح هغه وخت کارېږي چي یو څوک په ډېر اسانه او ساده کار کي پاته راسي؟

حمید وایي:

د بوسې په هوس غم کړه ربوده
بدبختۍ مې **و یوست غاښ په پالوده**
(کلیات - ۲۰۶مخ)

(د لرغوني شاعرۍ ګړنې) کتاب کي دا ګړنه نسته.

***

**هډو پوست کېدل:**

د ډېر رنځ له امله دونه ډنګرېدل چي یوازي ئې پوست او هډوکي پاته وي نور ئې غوښه ټوله ویلي سوې وي.

**حمید وایي:**

زه د ستا له ډېره غمه **هډوپوست شوم**
تـه زمـا لـه خـرابیه بې خبره
(کلیات – ۲۱۳مخ)

**دا وراشه په کندهار کي ډېره عامه ده.**

نن رنځـور یم د کلو پر پرېدنو پروت یم
**هډوپوست یمه** طبیب راځخه پردی سو
(سرامني اوښکي – دلیکونکي شعري مجموعه، ۳۷مخ)

**د "لرغونې شاعرۍ ګړنې" په ۲۵٦مخ کې د (هډوپوست کېدل) ګړنې ته لیکل سوي دي: "ډېر غمېدل، دردېدل، سختۍ ګالل". دا ئې ضمني معناوي کېدلای سي.**

***

**تر خېښ نس ور پېښ:**

**د کندهار په پښتنو کي دا متل عام دئ چي وایي: "تر خېښ نس راپېښ دئ".**

**حمید هم دا اصطلاح راوړې ده:**

اول مـه وای مین شوی چې مین شوې
اوس راپېښنه هر چې ده نسه په خوېښنه
(۲۳۵ – مخ)

***

**۴،۳ – د (ښین) او (ږې) لرونکو لغتو مشترکات:**

**د (ښین) او (ږې) اوازونه د پښتو ژبي له پاره خورا ډېر اهمیت لري. د پښتانه او پښتو زړه له همدې توري سره تړلی دئ که دا**

توری د پښتانه او پښتو څخه لیري سي، له دواړو څخه به یوه بې معنا کلمه جوړه سي. لکه انګرېزي چي د (ډال، ړې، ټې) تورو په تلفظ سره له نورو اروپایي ژبو څخه بېلېدلای سي، لکه عربي چي د حلقي تورو (ح، ع، ق، ...) له مخي پېژندل کېدای سي، لکه چینایي ژبي چي د "ونګ، بنګ، منګ، ..." وشمه آوازو له رویه معلومېدلای سي، دغه راز پښتو هم د "ښ، ږ" د لوېدیځ او منځني ګړدود له تلفظ څخه تشخیص کېدلای سي. د ختیځ ګړدود تلفظ ئې ځکه ما یاد نه کړ، چي هغه کټ مټ د (خ) په شان دئ. (خور= خواهر) او (ښور= حرکت) کټ مټ یو راز تلفظ کوي.

پوهاند دوکتور زیار صاحب خولا په دې عقیده دئ چي د (مونشن) او (زوریخ) ښارو نومونه دي (مونښن) او (څوریښ) ولیکل سي او دلیل دا راوړي چي په الماني او روسي ژبو کي د (ښ) او (ږ) ږغونه "له پښتو سره ګډون لري" (وګ: لیکلارښود – ۵۵مخ). البته د پوهاند صاحب مراد د دغو اوازو هغه راز وینګ نه دئ لکه د پښتو په ختیځو او شمال ختیځو لهجو کي تلفظ کېږي.

د خوشال خان او د ده د عصر په نورو پښتو ادبیاتو کي د (ښین او ږې) د کارولو او تلفظ کولو هغه مشترکات چي له لوېدیځي لهجې سره ئې لري، په لاندي ډول د الفبې په ترتیب وړاندي کېږي.

***

**اخښل:**

په نورو لهجو کي ئې (اغښل) وایي.

میرزا خان انصاري وایي:

چي اوړه ئې د مظلوم په وينه **واخښه**
په هغو شوې جاودانه ښادي زوړې
(۲۳۳- مخ)

**اخښې:**

د خور ميړه، د ماندينې ورور.

**خوشحال خان په دستارنامه کي ليکلي دي:**

"خسر د سړي پلار دی **اخښي** ورونه شخينې خويندې
د خسر عورتې واړه په حساب کښې لکه ميندې
(۱۸۳- مخ)

**اخښي ته په نورو لهجو کي (اوښی) وايي.**

***

**بخښل:**

**په لوېديځه لهجه کي ئې (خ) او(ښ) دواړه تلفظ کېږي او په کلاسيک ادب کي ئې هم وينګ او کښنګ دواړه همداسي دئ. په ختيځو لهجو کي ئې د (بخل) په شکل تلفظ کوي.**

**خوشحال وايي:**

غر ګناه راته د خس غوندې ښکارېږي
چې په مهر کرم رايشم **بخښل** کړم
(۱۲۷- مخ)

***

**پکښې:**

**د کندهار د لهجې دا کلمه په نورو لهجو کي (پکې) ويل کېږي. خوشحال خان ئې د (پکښې) په ډول ډېر زيات راوړي.**

څه خوښي ئې **پکښې** ایښې ده پوهېږې
هـــر نفـــس چې دې واته ننــواته کــا

(۱۵– مخ)

**د خوشحال خان د دغه بیت عرفاني مفهوم حضرت شیخ سعدی رحمة الله علیه داسي بیان کړی دئ: "هر نفسی که فرو میرود ممدّ حیات است و چون بر می آید مفرّح ذات پس در هر نفسی دو نعمت موجود است و بر هر نعمتی شکری واجب" (وګ: د ګلستان مقدمه).**

**یا:**

شیخـــان چــه هــسې اوږده نمــونځــونه کــا
**پکـــښې** باغــــونه اســــونه جونــــه کــــا
**پکښې** رنګین رنګین ګنډی وریښمین سکښې
**پکـــښې** د ســپینو د ســرو ګنــجــونه کـا

(ارمغان – ۱۰۹مخ)

***

**پېښې:**

**پېښې د ( تقلید) معنا لري. مفرد شکل ئې (پېښه) ده، چي فشار ئې پر دوهمه څپه راځي. په کلاسیک ادب کي ئې مثالونه سته. په ختیځو لهجو کي د (پېښه = واقعه، حادثه) او (پېښه = تقلید) جمع دواړي په اوږده (ې) لیکي. د کندهار لهجې د کلاسیک ادب قاعده خوندي کړې ده چي د پېښه جمع په اوږدې (ې) او د پېښه (واقعې) جمع په لنډې (ي) سره کوي.**

**رحمان وایي:**

په هر شان چه یار خوښېږي زه هغه کړم
خپـلـول د صاحبانـــو په **پېښو** دي
(۲۱۲- مخ)

***

**څښل، چښل:**

دا کلمه د پښتو په زیاترو لهجو کي (څکل، چکل) ده. په کندهاري لهجه کي ئې (چښل) تلفظ کوي. خوشحال خان ویلي دي:

که یـا دې لـه اغیـاره سره نـه ده بـاده **څښلې**
سکـه و وایـه دلبرې چې پـه څـه دې دا طرب ستا
(۳۳ - مخ)

یا:

که د تن وینې یو جام **و څښې** لا ښې دي
نـه او گـره د بخـیـلانو یـو کاشـک
(۱۰۵- مخ)

یا:

مـوړ بـه څنـې نـشم، زه د مـیـو مستـسقی یـم
تل که هسې د کې پیالې **څښمه، څښمه، څښم**
(۱۴۸- مخ)

**قادر خان ختک ویلي دي:**

چې داخل دي د دنیا په خـرابات کې
پـه وار وار بـه واړه **څښې** د مرگ ایاغ
(۷۵- مخ)

***

**خېښ:**

د کندهار په لهجه کي "خېښ، خېښان" هغه دوستان او خپلوان دي چي د نجونو د ودولو له لاري خپلوان کېږي. نَسَبي خپلوانو ته خېښ نه وايي.

په ودو کي که خېښان يو له بل څخه ناراضه سي نو بدلزني په بابولاله کي وايي:

چي پر موږ وه، موږ خو وکړه
اوس چي وار پر **خېښي** راغی، خېښي غول پر لينګو وکړه

خو که يو له بل څخه راضي وي، داسي وايي:

چي پر موږ وه، موږ خو وکړه
اوس چي وار پر **خېښي** راغی اميري کاروني وکړه

د کندهار په پښتنوکي دا متل عام دئ چي وايي: "تر خېښ نس راپېښ دئ".

حميد هم دا اصطلاح راوړې ده:

اول مه وای مين شوی چې مين شوې
اوس راپېښه هر چې ده نسه په **خوېښه**
(کليات – ٢٣٥مخ)

بل ځای:

چې هر چا ده آشنايي نيولې **خېښه**
عاقبت به جدايي شي ورته پېښه
(کليات – ٥٠٥مخ)

خوشحال هم د "خېښ" ويی په همدې معنا راوړي:

څوک چه قانع دی مخدوم ئې وګڼه
څوک چه حريص دی محروم ئې وګڼه

که ورور که زویه که **خپښ** که دوست دی
چه ستا په رای نه وی معدوم ئې وګڼه
(رباعیات – ۶۴مخ)

**په رباعیاتوکي ئې د (خوېښ) په شکل هم کښلی دئ (۱۵۱مخ). زه فکر کوم چي دلته به د فارسي "خویش" رسم الخط اغېزه کړې وي.**

**هجری وايي:**

ما هرګز راستي د چا لیدلې نه ده
برادر که یار و **خویش** که عزیزان دي
(۱۸۳–مخ)

**میرزا خان وايي:**

کل همت ئې په مجاز پوري تړلی
د لباس زیبایي زیاته شوه له **خپښه**
(۱۵۵–مخ)

**شمس الدین کاکړ ویلي دي:**

پر صحرا لکه مجنون ګرزم له خلقو
نه مي راز له بیګانه شي نه له **خپښه**
(۱۱۳–مخ)

***

**شرمښ:**

چه دا د سا ښتن همه یو
که فهم و کړې لکه رمه یو
مرګ لکه **شرمښ** رابا ندي ځغلي
د رب و فضل و ته په تمه یو
(رباعیات – ۳۳مخ)

په کلاسیک ادب کې "لېوه" هم موندلای سو او عموماً داسې فکر کېږي چې دا کلمه د "شرمښ" معنا لري. د کندهار په لهجه کې شرمښ او لېوه دواړه سته. ښاغلی ډاکټر عبدالرازق پالوال د "لېوه" کلمه د ټولو (درنده ګانو) په معنا بولي (معیاري پښتو – ۱۷۰ مخ).

میرزا خان انصاري "لېوه" د ځنګله درنده بللی دئ او له دې څخه ثوک د ښاغلي پالوال د نظر ملاتړ موندلای سي ځکه شرمښ د ښتو او غرو درنده حیوان دئ.

د شیطان دانش عذاب دی که باور کړې
چې ئې نغوږې بد **لېوه** د تور ځنګل دی
(۲۰۵ – مخ)

کندهاری مخلص وایي:

چې سموالی د چا نه واورې په غوږ
په ورو ورو تګ غلط مه سه د هر ګږ
**شرمښ** غلی تر شپانه پوري ورځي
څو چې ونیسي تر غاړه د بل مږ
(۱۶۹ – مخ)

په خوشحال فرهنګ – ۱۳۱مخ او د خوشال خان ختک کلیات په وییپانګه – ۱۲۳۰مخ کي شرمښ د (شرمخ) په شکل لیکل سوی دئ، چې دا راز تلفظ نه د خوشحال خان خپل وینګ دئ او نه هم د ختکو.

***

ښانک:

له لر ګو څخه جوړي سوي غټي کاسې ته وایي.

**خوشحال خان وايي:**

نه په خوله ګولۍ خوړلې د ټوپک[1]
نه نــــمړی د لئيمانــــو د **ښانک**
(۱۰۵-مخ)

**په سواتنامه کي راغلي دي:**

د "تــالي" کــه درتــه وايم يــو کالی دی
ډک **ښانک** دی د اوګرې، که يا تالی دی
(۳۰-مخ)

**رحمان باباوايی:**

چه په اصل خدای نسکور وي پيدا کړی
څوک به څه خوري د دې دهر له **ښانکه**
(۱۷۶-مخ)

**هجري ويلي دي:**

عاشق زړه هسي د يار په زلفو بای کړو
لکه بای کړو ګدايانو په **ښانک** روح
(۳۱۳-مخ)

**عبدالقادر خان ختک ئې "ښانکی" شکل ثبت کړی دئ، چي د ښانک مصغر دئ.**

هر چې وخورې هغه ستا شي نورې پريږدې
دا دنيــــا د مهمانيــــه **ښــــانکی** دي
(۲۷۳-مخ)

---

[1] په کلاسيک ادب کي ټوپک هر ځای په (ټ) سره ليکل سوی دئ. پوهاند دوکتور زيار صاحب د (ټوپک) او (توپک) تر منځ زړه نازړه دئ. يو ځای د (توپک) شکل تر (ټوپک) کره بولي (وګ : د خوشحال ادبي پښتو – ۳۶مخ) خو بل ځای ئې بيا په ليکلاربښود (۲۰۸مخ) کي له دغه حکم سره سره د (ټوپک) شکل معياري بللی دئ.

په دستارنامه (۱۴۳مخ) کې "شحنکونه" هم ثبت دئ

***

**ښخ:**

په کلاسیک ادب کې (ښخ) او (ښخول) کلمات د لوېدیځې لهجې له وینګ سره سم راغلي دي. خوشحال خان وايي:

په لویه ورځ به ستا په ګرېوان **ښخي** کړم منګولې
څه ته، څه دې ویل دي ستا د خـون څه پروادار یم

(۱۱۹ – مخ)

په ختیځو لهجو کې ئې کله (خ) تر مخ لیکي او کله (ښ).
(وګ: معیاري پښتو – ۱۴۷مخ)

***

**ښکار، میرښکار:**

میرشکار، میرښکار هغه څوک دئ چې د ښکار چاري پر مخ وهي. په پخوانیو منصبو کې (میرآخور، میرغضب، میرمنشی، میرهزار، میر شب،...) بېلابېل ملکي او پوځي منصبونه ول.

د خوشحال فرهنګ په ۱۹۵مخ کې چې ئې د (میرښکاران) معنا "د ښکار مهارت لرونکي، د ښکار ماهران" کړې ده، د تامل وړ خبره ده. خوشحال خان وايي:

د **ښکار** په کار کښې که هر څو ښه یم
چـه باز مې ځـان دی هــغه یو زه یم

په باز که هــر څو قـازو کلـنګ نیسم
ږیره مې سپینه شوه **میر ښکار** لا نه یم

(رباعیات – ۲۵مخ)

***

**ښکنځل:**

خوشحال خان هر وخت دا کلمه د (ښکنځل) په شکل راوړې ده او که ځای ځای موږ د (کنځل) پر شکل پېښېږو، هغه به یا د کاتب لاسوهنه وي یا د مرتب. مثالونه ئې دا دي:

واړه مست شو بد ویل کا
و سړیو ته **ښکنځل** کا
(۲۷- مخ)

یا:

خوشحال چه تشه مینه په بل کا
تر حلق به پور ته خالي ویل کا
خدای ئې ورپرېږده یو هسې یار لری
په قهر راشي ورته **ښکنځل** کا
(رباعیات – ۶مخ)

حمید وایي:

چې دې وپاخوي ما ته په **ښکنځلو**
څه په بد کې نېکخواهي کاندي رقیب زما
(کلیات – ۱۶مخ)

د خوشحال خټک کلیات په ځینو برخو کې د (کنځل، کنځا) شکلونه راغلي دي خو دې ټولو مواردو ته ئې کښلي دي چې په خطي نسخو کې د (ښکنځل، ښکنځا) شکلونه ثبت دي ګویا د کنځل ثبت د کاتبانو او ناسخانو لاسوهنه ده. لکه دا ځایونه:

که هر څو راته **کنځل** کا، یا قهرېږي
په خوله واړه شکربار دی هغه کس
(۸۳ – مخ)

په لمنلیک کې ورته کښلي دي: "لومړی، دریمه، دوهمه: ښکنځل".

د سرو شونډو په شرابو چې بیخود شم
له مستیه رقیبانو ته **کنځل** کړم
(۱۲۰- مخ)

دلته ئې په حاشیه کې ورته کښلي دي "په قلمي کې: ښکنځل".
په دستارنامه ۲۱۴ مخ کې شکنځل لیکل سوي دي.
په سواتنامه کې لولو:

مخامخ په یو ځو ورځې ښه نمانځه شم
پسې شا به حرام خور، ګیدي **ښکانځه** شم
(۱۴- مخ)

حمید وایي:

په دغه لمانځه نمانځه نه شي **ښکانځه** شي
چې دې زړه دی په رباب مخ په محراب
(۳۴- مخ)

عبدالقادر خان ویلي دي:

په **ښکنځل** ئې سرفراز عبدالقادر کړ
د ژوندون له باغه خوره سمنبر
(۵۶- مخ)

میرزا حنان بارکزي هم د (ښکنځل) په وینګ کې د کلاسیکو شاعرانو لار اخیستې ده:

تبسم ئې له **ښکنځلو** سره زېب که
قدر زیات لري ترخه چې شي شراب
(۴۳- مخ)

* * *

خوشحال وايي:

جن په حجاب کښېږ د مور له څنګه
مګر ځان ژغوري د مور له چنګه
که په صحرا ګرځي که کوڅه ګرده شي
**شنده** به وکا په خپله ننګه

(رباعيات – ۵۲مخ)

دغه راز بل ځای ئې جمع شکل راوړی دئ:

ګوره چې کيږي په خوشحال **شندي**
او به په څنګ کښېږ مرګ ئې له تندي
له چا به څه لره مانه ګيله کا
خود ئې په ځان وکړې دا رنګ ناپسندي

(۲۹۹ – مخ)

عبدالقادر خان وايي:

چې ئې اوس په ټولو نه مريږي
همدا خپل دولت به وکا په تا **شنده**

(۱۸۵ – مخ)

"شيندی" د بيکاره ګل په معنا هم راوړی دئ:

بد مخ ناحقه په زر پساله شي
ښه مخ چه بيا مومي پسول هاله شي
که هر څو رنګ لری سرې سپينې پاڼې
**شيندی** به چری نرګس باله شي

(رباعيات – ۱۵۵مخ)

اشرف خان هجري ويلي دي:

تا به کله هومره **شندي** په هجري کړې
که ئې صبر ستا له ميني کړی فواد

حمید وایي:

په بد خوی به د چا څه کړي
په خپل ځان به **شندي** وکړي
(کلیات – ۲۷۹مخ)

د شیندل لغت اوس په میډیا کي د "ګلانو پاشلوله پاره" کارېږي. دغه استعمال ئې زما په نظر سم نه دئ ځکه په شیندلو سره هغه فرحت او خوښي نه سي افاده کېدلای چي د ګلانو د پاشلو پر وخت چا ته میسره کېږي.

په دستارنامه (۱۷۶مخ) کي (ښندل) د (شیندل) په شکل هم راغلی دئ:

"مال تر ځان ګران دی، چه په ډیر ضرور وګاته شي – د شرم د پاره وشنده شي". دلته که د کاتب غلطي نه وي پیښه، نو (شندل) د پاشلو په معنا کار سوی دئ. په کابل چاپ دستارنامه (۹۷مخ) کي دغه عبارت "وښنده شي" راغلی دئ.

***

غاښی:

د کوتل سر، تر غره د اوښتلو بند. مثال ئې "د کوړک غاښی" دئ.

خوشحال وایي:

مه کړه نادانه د نه کړو کار دی
دا چه پرې خېژې **غاښی** دشوار دی
خر دې کمزوری زبون لیده شی
چه دې پرې ایښې دا هومره بار دی
(رباعیات – ۱۴۸مخ)

په سواتنامه کي هم "غاښی" راغلی دئ خو هلته ئې د شعري

ضرورت په حکم "غاشي" لیکلی دئ او دا خبره پر دې حقیقت باندي یو بل دلیل کېدلای سي چي خوشحال خان (ښ) د (خ) په شان نه تلفظ کاوه.

هندوستان وته تور غر لري بد **غاشي**
پرې خاته به د لښکرو په غوغا شي
(۳مخ – دکابل چاپ)

په ارمغان خوشحال (۱۰۱۸مخ) کي ئې هم "غاشي" کښلی دئ.

***

**کښ***:

ډېر کوچني سپک بږغ ته ویل کېږي. هغه بږغ چي د یوه شي د ځکېدلو له اسیته منځ ته راځي.

عبدالقادر خان ویلي دي:

په تش کښ لکه هوسۍ راځني ترپلي
له یارۍ مې دې توبه شه چې د **کښ** ئې
(۳۵۹– مخ)

دا (کښ) د کاف په زوه ره کي ویل کېږي. که د کاف په زور (فتحه) وویل سي نو بیا ئې معنا اوړي او د یو وار ځکولو په معنا کارېږي. حمید مومند وایي:

د خوبانو د خـوديه په چلـم کـې
د یـوه **کښ** تمباکو شه زما روح
(کلیات – ۵۶مخ)

***

*کښ: برید، حمله، هجوم. کښ واچوه: ځه، لار دي وهه! (ع. پالوال)

**کښتۍ:**

**د کښتۍ له پاره د پښتو په زیاترو لهجو کي (بېړۍ) کلمه کارېږي، خو په لوېدیځه لهجه کي د کښتۍ استعمال عام دئ.**

**خوشحال خان هم د کښتۍ کلمه زیاته راوړي.**

چې کښتۍ پکښې بیایي، په عظیم دریاب ګډېږي
په بیولـو د **کښتیه** ملاحـان پو هـېږي بس
(۸۳ – مخ)

**په لوېدیځه لهجه کي (بېړۍ) د زولنو یو ډول ته هم ویل کېږي.**

***

**کښته:**

**دا لغت له لوېدیځي لهجې پرته په نورو لهجو کي (ښکته، کته) ویل کېږي. خوشحال خان ئې د لویدیځي لهجې له وینګ او کښنګ سره سم راوړي*.**

هسې مال را مه کړه چې ئې ځای وي تر زړه **کښته**
هسې امـوال راکـړه چې ئې ځـای د زړه د پاس
(۸۶ – مخ)

**رحمان باباوایي:**

نه مي **کښته** ملک لیدلی دی نه پورته
خـبر نه یم پـه یمـین و په یسـار
(۳۵ – مخ)

**د کندهار ښځمني د اتڼ په نارو کي دا بند ډېر وایي:**

---

* اوس کوښنښ کېږي چې پر ځای ئې "ټیټ" وویل سي (ع. پالوال).

پورته پنجوايي، کښته سپيروان دئ

***

**کښل:**

**د خوشحال په کلام کي (کښل) هم د (ليکل) په معنا راغلی دئ او هم د (مچول) او هم د (ايستل) په مفهوم. د کندهار په لهجه کي (کښل) د ليکلو په معنا عام استعمال لري او هم له ژوره ځايه څخه د ايستني په مانا.**

**خوشحال خان وايي:**

که څوک زر کتابه وکښي لـه دې بابه
که په **کښل** شي، زر به نور پسې اغاز کا
(۱ – مخ)

**يا:**

ستا په راز مې صورت سر تر پايه يو دی
زړه مې گوره په تصوير **کښلی** کتاب
(۳۵ – مخ)

**يا:**

اول فکر د زړه وکړه، بيا ويل کړه
کاتبان تر **کښو** پخوا وهي مسطر
(۶۹ – مخ)

**حميد مومند وايي:**

**څوک دې صبر آرام نه غواړي په عشق کې**
**د ازل کاتب دي کښلي په دا باب سخت**
**(کليات – ۴۷مخ)**

**عبدالقادر خان وايي:**

د خپل زړه په تخته کښنه عبدالقادره

په کاغذ د عشق ویل نه دي د **کښنو**

(۱۴۹ – مخ)

**رحمان باباوايي:**

چه رنګين مضمون پرې **ښکلی** نه وي

څه په کار دی د بياض ورق رنګين

(۸۳ – مخ)

**ميرزا خان انصاري وايي:**

په اوراق به ئې نه مومې

نه چا **کښلي** په دفتر دي

(۴۸ – مخ)

**بل ځای وايي:**

محبت خبري ګرمي تر لمبه دي

کاتبان به ئې په کومو ګوتو **کښينه**

(۱۹۱ – مخ)

**يا بل ځای:**

قلم ژبه د حال **کښونی**

سم ګفتار ئې ښه رهبر دی

(۴۹ – مخ)

**د خوشحال خان کړوسی کامګار خټک وايي:**

نه ئې لوستی يو الف و، نه ئې **کښلی** و يو حرف

ولې درست وه پوهېدلی په اسرارو ما اوحی

(ديوان – ۱۵ مخ)

**له دې څخه څوک ویلای سي چي د "کښبل" ویی تر دغه وخته لا هم د (لیکل) په معنا په ختیځه ژبنۍ حوزه کي کارېدی.**

**میرزاخنان وایي :**

مُصوّرِ که دي صورت **کښبی** حیرانېږم
چي په څه دستوربه وکاږي ستا ناز
(۶۷ – مخ)

**شمس الدین کاکړ ویلي دي :**

چي پر **کښبې** ما "شمس الدین" د غم سندري
اوس دلبر کړ کاغذ باد هغه ورق
(۷۳ – مخ)

**خوشال خان بل ځای "کښبل" د "ایستل" په معنا کاروي. دی وایي:**

چې یوسف ئې د کنعان له څاهه **وکیښ**
د نیک بخت ستوري زوولی و بشیر
(۶۶ – مخ)

**دلته (کښبل) د ایستلو په معنا راغلی دئ چي د پښتو په نورو لهجو کي په دغه راز مواردو کي (ایستل) یا (وباسل) کلمه کارېږي. یا:**

په درست جهان به نه وي یو زما غوندي رسوا بل
ورځم توره **وکښلې** چې مین واورم په تا بل
(۱۰۸ – مخ)

**یا:**

که ته تیغ د جفا **وکاږې** و ما ته
ستا و تیغ وته به سر لکه ګیاه ږدم
(۱۳۶– مخ)

**د میرزا حنان بارکزي په کلام کي (کښېلئ) د (انتظار) له پاره د فعل په توګه د (ایستل) په معنا راغلی دئ:**

بس که ډېر جور و جفا پر "حنان" مه کړه
چي ئې **کښېلي** ستا د وصل انتظار سخت
(۴۷ – مخ)

**بل ځای د (توبې) له پاره د ایستلو (توبې کولو) پر ځای (کښېل) فعل کار سوی دئ:**

چي توبه ئې په ما **کښېښه** دا ستا له میني
په یوه دیدن دي ولي شو چف چف
(۷۶– مخ)

**د کندهار بل شاعر شمس الدین کاکړ (کښېل) د ایستلو په معنا داسي راوړی دئ:**

په ژوندوني څو غواص تر سر تېر نه شي
له دریابه کله **کښېلای** شي ګوهر بیا
(۳۵ – مخ)

**مولوي عبدالغفار بریالي هم (کښېل) د ایستلو په معنا کار کړی دئ:**

د تقوا جامې ئې **وکښېښې** زما له تنه
اول ناز، دوهم ادا، دریم غضیب
(اهار –۹ مخ)

**رحمان بابا (کښېل) د (مچول) په معنا داسي راوړی دئ:**

ما چې زخم ستا د توري، په خوله **کښېل** کړ
نور مي دا لذت بیا نه موند په مرهم کښېې.
(۱۶۱– مخ)

عبدالقادر خان ختک ئې داسې راوړي:

دواړه لب به ئې هغه عاشقان **کښېل** که
چې له یاره سرومال نه لري لب
(د کندهار چاپ دیوان – ۱۵مخ)

د ختیځې لهجې ویونکي تر کاف وروسته د (ښ) په تلفظ کې ستونزه لري، ځکه نو (کښېل) د (ښکل) په شکل وایي. د همدې لهجوي مجبوریت اغیزه ده، چې د عبدالقادرخان ختک په نوي چاپ دیوان کې د دغه بیت لومړی نیم بیتی داسې ثبت سوی دئ:

"دواړه لب به ئې هغه عاشقان **ښکل** کا"
(۴۱ – مخ)

***

**کښلی:**

خوشحال خان دا لغت د (ښکلي، ښایسته) په معنا راوړي. د کندهار له لهجې پرته د نورو لهجو ویونکي د دې لغت په لوستلو کې ستونزه لري او د (کشلي) په شکل ئې وایي.

خوشحال وایي:

هر چې ستا په **کښلي** مخ باندې مین دی
هغه درسته شپه له ماهه گفتگو کا
(۳۱ – مخ)

دغه راز هجري ویلي دي:

په ازل چه ئې جفا **وکښلیو** ورکړه
بیا ئې زړه کا د دردمنو د وفا روغ
(۷۰ – مخ)

***

**کښې (کښته خوا):**

**کندهاریان وایي:**

"چې باد ئې وي د **کښې**، اوریځ ئې نه وي د توښې".

**مولوي بریالی وایي:**

راته مه کاږه ساړه آهونه شیخه

د ځلې د **کښې** له باده باران بد وړي

(اهار - ۱۳۸ مخ)

**په دستارنامه کي لولو:**

"... په ناست په نماست تر نامه لاندي د کښیه تر زنگانه دپاسه دا د پټولو ځای دي مرد..." (۱۷۷ - مخ).

**عبدالقادر خان وایي:**

له **کښیه** وچاوده وخت د صبا شو

په هر مسجد کې اذان ادا شو

راشه چې کښل دي کړم اوس به بېلېږو

په ځان زموږه صبا بلا شو

(۳۷۳ - مخ)

**میرزا خان ویلي دي:**

له اورو ئې ښه باران پر ځمکه **کښې** کړ

ځای په ځای ئې نباتات باندي کړلي

(۴۴ - مخ)

***

**ایښوول:**

د پارسي (ماندن) په معنا.

د امر صیغه ئې (کښېږده) ده، چې په ختیځو او نورو لهجو کې (کېږده، کېده) په شکل کارېږي. په کلاسیک ادب کې د (کښېږده) شکل عام راغلی دئ. خوشحال خان وایي:

زر دی چې زړه مه د ننګ و شرم کا
صحبت د هر چا و بله ګرم کا
ډېر ګران کارونه په زر اسان شي
زر په فولاد **کښېږده** فولاد هم نرم کا

(رباعیات – ۷مخ)

عبدالقادر خان وایي:

د دنیا خوښي که واړه ورته **کښېږدي**
دروغجن دی که پرې غم د آشناور کا

(۱۷– مخ)

میرزا خان انصاري وایي:

په ګور کښې به ئې **کښېږدي**
پرې به پاس خاوري حجرت کا

(دیوان –۲۰مخ)

***

کښېنستل:

دا لغت د پښتو په ځینو لهجو کې (کېنستل) ویل کېږي. زیاتره ماخذونه ئې د لوېدیځې لهجې له تلفظ سره سم (کښېنستل) لیکي. خوشحال ئې هر وخت په ټولو صیغو کې له (ښ) سره یو ځای کاروي. دی وایي:

په هر ځای چې ځو محبوبې سره **کښېني**
هغه ځای مې تر جنت ښایسته لا کا

(۷– مخ)

یا:

که هیڅ کاروبار دې نه وي درته وایم
هسې مه **کښېنه** بې کاره، نا په کار
(۷۱- مخ)

کامګار خټک وایي:

څوک چې **کښېناسته** د میني په اورنګ
نه ئې سیال دارا شکوه دی نه اورنګ
(دیوان - ۵۵مخ)

میرزا خان وایي:

چې پر تخت د سلیمان باندي **دیو کښېناست**
او په حکم ئې عمل مار و لړم کا
(۲۹- مخ)

له موضوع سره د ارتباط له مخي به بده نه وي د "کښېنول" پر مصدر باندي هم وږغېږم.

نجار (ترکاڼ) د دروازې چوکاټ جوړوي، بنا (ګلکار، خټګر) ئې په دېوال کي کښېنوي. جوړول د انګرېزي (make) انډول او کښېنول بیا د (installation) معادل دئ. په پښتوکي د ځینو افعالو سره بېلول ډېر ضروري دي.

په لیکلار ښود (۳۸مخ) کي "دروازه کښېنوله" جمله د "دروازه جوړه کړه" په معنا تعبیر سوې ده، تېروتنه او باید سمه سي.

کښېنستل د (رفع حاجت) په معنا هم کارېږي. ډاکټر د کوچني (ماشوم) له مور څخه پوښتنه کوي "دا هلک نن څو واره کښېنستلی دئ" یعني څو واره ئې (رفع حاجت) کړی دئ. د نس ناسته له همدې کښېنستل څخه مشتق سوې ده. اوس چې زه د

غونډي یا میټنګ له پاره په رسنیو کې د (ناسته مې ورسره وکړه) جمله اورم، ډېره خوا مې بدېږي. دا د فارسي ژبې په پیښو د (نشستي داشتم) ټکي په ټکي ترجمه ده. دغه راز دا لاندي جملې د معناله مخي یو له بله توپیر لري:

"ډوډۍ تیارول" د "ډوډۍ پخول" معنانه ورکوي.

ښابام ته زینې وخېژولې. مطلب ئې دادئ چې زینې ئې جوړې کړې.

د بادرنګو جوړنګ (بوټی) وغزېدی یعني وده ئې وکړه.

سړی په ګامو سو، یعني رهي سو.

بوټ ساز بوټ پر غالب سپور کړ.

***

کښېښ:

د خوشحال خان او د هغه د کورنۍ د شاعرانو په کلام کې دا لغت د ایښودلو په معنا د لویدیځې لهجې له استعمال سره سم، خو په لږ بدلون راغلی دئ. په لوېدیځه لهجه کې (کښېښو، کښېښود) ویل کېږي. له امکانه لیري نه ده چې د (کښېښ) کلمې د پای پر توري به کاتب پېښ (ضمه) ایښې وي. که دا امکان سهي وي نو د (کښېښو) د استعمال اورشو نوره هم پراخېږي.

خوشحال خان ویلي دي:

قارون ولاړ تحت الثری لره لا درومي

موسی پاس په علیین **کښېښ** قدم

(۱۲۳- مخ)

کامګار خټک ویلي دي:

چې جمال دې برهنه شه له نقابه[2]
په ادب ورته مخ نمر په زمین **کښېښي**
(دېوان – ۴۷مخ)

***

**کوښي:**

کوښي د پارسي (پاپوش – کفش) په معنا په کندهارۍ لهجه کې ژوندی ویی دئ. د کندهار نجوني په لوبو کې وايي:

"کوښي مې اوبو یووړې، غيم ئې چې یو ئې وړي، پلار مې سوداګر دئ بيا به نوري راته راوړي".

رحمان باباويلي دي:

د ديندارې ارتينې له يوې **کوښي**
صدقه شه سل بې دينه نارينه
(۸۷ – مخ)

***

---

[2] د دې بيت له مقطع څخه داسي ښکاره ګندېږي، چې دا غزل دې شاعر د "سعيد" په جواب کې ويلې وي. مقطع داسي ده:

د کامګارۍ و جواب ته څه امکان دی
چې سعيد په پښتو ژبه تزئين کښېښي

سعيد ويلي دي:

د سعيد شعر که ګل دیوه باغ دی
دې غزل په پښتو شعر تزئين کښېښي

(دېوان – ۸۷ مخ د همېش خليل مرتبه)

بايد وويل سي چې د سعيد په دېوان کې د دغه غزل د ټولو قافيو (کښېښي) د (کشيش) په شکل کښل سوی دئ او په مقطع کې ئې "پښتو" هم "پشتو" ليکلې ده!!
د کامګار ختک د دېوان په (۵۶ مخ) کې هم د دېوان ترتيبوونکي د "کښېښي" پر ځای
"کشيش" کښل دئ او ...

مښک:

د خوشحال خان په کلام (د کامل چاپ) کې (مشک) د (مښک) په بڼه ډېر لیکل سوي دي، نېخه چې ولې؟ که ئې همداسې ولیکو، نو د پښتو په ختیځو لهجو کې ئې باید (مخک) ووایې! ما له هیڅ پښتانه څخه دا راز وینګ نه دئ اورېدلی. د (مښک) په تلفظ کې د لوېدیځې لهجې ویونکې هیڅ راز مشکل نه لري خو دا تلفظ د کندهار په لهجه کې نسته، سره له دې به ئې یادونه له ګټې خالي نه وي.

زلفې ئې ښکاره کړې **مښک** عنبر ئې په ماتوی کړل
اوس به له دې پسه څه عطار لره وردروم
(۱۳۷–مخ)

د خوشحال رباعیات بیا (مشک) لیکي:

بارخو ئې نه دی ګل د ګلاب دی
زلفې ئې طعن د **مشک** ناب دی
راشه که دواړه شونډې ئې ګورې
چه پرې مستېږې هغه شراب دی
(۱۲۳–مخ)

پوهاند زیار صاحب د (مښک) ویې په "را پښتو شویو پورویېوونو" شمېري (وګ: د خوشحال ادبي پښتو– ۳۹مخ) ګویا په (مښک) کې راغلی ښین په حقیقت کې د پارسي شین دئ.

(مشک) که په شین ولیکل سي، ما ته سم ایسي. مښک ئې خوشې ناوړه بڼه ده.

د کندهار شاعر شمس الدین کاکړ وایي:

نرخ د **مشکو** به ارزان که په ختن کښي
که نسيم راوړي له زلفو بوی دا ستا
(۲۹ – مخ)

***

**نخښه:**

**د خوشحال کلام دئ، چي وايي:**

ډيرې لـري نښې د صورت د زيبايۍ
څه خو درته وايم يو څو **نخښې** آشکارا
(۷– مخ)

د "نښې" لغت ته ئې په لمنليک کي کښلي دي چي په "لومړۍ، دوهمه، دريمه "خطي نسخه کي" په دواړو مصرعو کې: "نخښې" راغلی دئ. بايد ووايم چي له لومړۍ خطي نسخې څخه ئې مراد هغه نسخه ده چي د خوشحال خان په ژوند کي په "۲۲ شهر رمضان سال ۱۰۹۹ در مقام جانکوړه" کي ليکل سوې ده. ښاغلی استاد حبيب الله رفيع په دې نظر دئ چي دا نسخه د خوشحال خان په خپل لاس ليکلې سوې ده (وګ: خوشحال ريويو، درې مياشتنۍ مجله، ۶۸ مخ، د ښاغلي رفيع مقاله، پښتوا کيډيمي، پشاور). دا نسخه په خوشحال ختهک کليات (د افغانستان د علومو اکاډيمۍ) کي "لومړۍ قلمي نسخه" بلله سوې ده.

د دې غزلي په مقطع کي ئې د (نخښه) کلمه د (نښه) په شکل راوړې ده، خو په حاشيه کې ورته کښلي دي چي په قلمي نسخو کي (نخښه) ده. عبدالقادر خان ويلي دي:

د بوريا **نخښي** په تن د مسکينانو
لا ښايست تر منقش جامو د زر کا
(۱۷-مخ)

***

**وربښم:**

د خوشحال په کلام کي له "وربښته" څخه (ر) ايستل/ ايسته کړه سوې ده خو په "وربښم" کي بيا پاته ده. وربښم په کندهار کي په همدې شکل ويل کيږي خو د ښتو په ختيځه لهجه کي ئې (و) ځني ايستل/ ايسته کړه سوی دئ او "رېښم" تلفظ کيږي. خوشحال ئې "وربښم" ليکي:

د کيمخواب وته ئې مه غړوه سترګې
په **وربښمو** کي چينجی دي د حرير
(ارمغان - ۴۰مخ)

***

**وښی:**

وښی د (باهو) په معنا باندي (سره) د کندهار په لهجه کي مروج لغت دئ. خوشحال خان هم راوړی دئ.

د خوشحال ختک د پاره چې مې خور شو
په مغان مې **وښي** کېښول باهو هم لا
(۱۸-مخ)

***

**وېښته:**

د کندهار په لهجه کي (ورېښته، ورېښتان) د (وېښته) او (وېښتان) په نسبت زيات ويل کيږي. خو (وېښته او وېښتان) هم عام رواج لري، خوشحال خان دا دواړه شکل راوړي دئ.

هر **وېښته** چې په صورت باندې لیده شي
که پرې ځیر شې د شناخت ور به درته واز کا

(۱-مخ)

**دغه راز رحمان بابا ويلي دي:**

د صورت له عیبه هسې پاکیزه دی
لکه ذات د **وېښته** نښته دی په ها

(۱۷-مخ)

**اشرف خان هجري ويلي دي:**

په بدن مې **وېښته** ودرې بې شکه
چه قصه د وامق یاده له عذرا کا

(۳-مخ)

**عبدالقادر خټک وايي:**

سپین **وېښته** د بدنامۍ په وسمه تور کا
چې آرزو د صفا رویو د وصال کا

(۲۰-مخ)

**خوشحال خان له لوېدیځ ګړدود سره سم "وېښته" د جمع په صورت کي هم کاروي او صفت ئې "ځږه، زږه = زيږه" راوړي.**

**وېښته** ئې د سر ځږه د تن هم ځږه ګرلنه بدرنګې
یکدله ګیډوره په خوړلو نه مړيږي

(ارمغان- ۹۰مخ)

**پوهاند زیار صاحب د خوشحال خان پر دغه "زږه" صفت باندي د (زيږ) د مونث خیال کړی دئ (د خوشحال خان ادبي پښتو - ۵۰ مخ) چي د تأمل وړ دئ. د (زيږ) مونث شکل د (ږ) په زور (فتحه) سره ویل کیږي. که (ږ) ته زوه رکی ور کړه سي، هغه**

وخت نو بیا مونث شکل نه بلکي د جمع شکل دئ. د خوشحال خان (زړه) د (ړ) په زوه رکي باید تلفظ سي.

***

**هېښ:**

هېښ د (حیران)، (هک پک) او ځای ځای د (ساده) معنا لري. دا لغت له لوېدیځ ګرځدوده پرته په نورو لهجو کي د تلفظي ستونزې له اسیته د استعمال موارد نه لري او که لري ئې، هم ډېر نادر دي. خوشحال خان د (هېښ) لغت زیاتره د (ساده، اریان) په معنا ډېر راوړی دئ.

ځوک به ما غوندي یو **هېښ** په زړه ساده وي
چې وفا غوارم لـه کښلیو، په دا اش یم
(۱۱۶– مخ)

په دا هو مره هوښـیاریه هسې **هېښ** یم
ځوک چې زهر راتـه نوش کا هم منل کړم
(۱۲۷ – مخ)

**یا:**

ستاد خـولې خبرې نورې د زړه نـورې
زه خوشحال ختهک یو **هېښ** یم پرې باور کړم
(۱۴۵– مخ)

**میرزا خان انصاري ویلي دي:**

د دنیا په چـاري پـوه تـر انده تـېره
څه د دیـن پـه طلب نه پـو هېږې **هېښه**
(۱۵۴– مخ)

***

## ۳، ۵ : بږې لرونکي لغتونه:

**بزوه Bazáwe:**

بزوه د کندهار په لهجه کي (ګیدړي) ته وایي (لس زره پښتو لغتونه). د بزوي انګولا ډېره بېرووونکې، او د ګیدړي او چغال له انګولا څخه ډېره بېله ده.

خوشحال وایي:

هم ئې وينم، هم ئې اروم تري تېرېږم
چې په ځنګ راته **بزوه** کا بو بو
(۱۷۱ – مخ)

یا:



د پېښنه مه شه د بخت کږوه
خوني مزری کا په تا **بزوه**
دباز شړلې زرکه مې ولېده
د باد خور کو باندې زوږه
(رباعیات – ۷۵مخ)

په چاپي دېوانو کي د دې بيت (اروم) د (اورم) په شکل راغلی دئ او دا یادونه د دغه مخ په حاشیه کي هم سوې ده. دا خود اړولو برخه ده چي پخپل ځای کي په تفصيل سره څېړل سوې ده.

***

**بږغ:**

د پښتو دغه متنازع فيه لغت په ځينو لهجو کي (غږ) ويل کېږي. خوشحال خان د (بږغ) شکل راوړی دئ او ځای ځای ئې د (ژغ) په بڼه هم استعمال کړی دئ. هغه ځایونه چي دا کلمه پکښې

د (غږ) په شکل کار سوی ده، ما ته د خوشحال خان خټک وینګ او
کښنګ نه ایسي. مثالونه ئې:

د بد زویه **بږغ** د فسق و د فساد ځي
د ښه زویه ځي ناري په ملکوت
(۳۸- مخ)

یا:
خوشحال خان د خټک لمسي "معظم" په مرثیه کي وایي:

څه د بدو **بږغ** ؤچې ما ښام راباندي وشو
تندرؤ، یا توپ ؤ پرې مې تخنې تخنې زړه شو
(۱۸۱- مخ)

یا:

چه ئې لرزه وه په ملک له جیشه
زړه ئې شاد کام ؤ له هره حیشه

ګوره په ګور کښې هغه شاهان دی
چه **بږغ** ئې نه شي د مرګ له طیشه
(رباعیات -- ۶۰ مخ)

دغه راز د رباعیاتو په ۲۲۸ مخ کي هم (بږغ) ثبت سوی دئ.

***

ژغ:

ربه ډیر اولاد دي راکړ، منت داریم
د خوییه **ژغ** ئې بیایي په هر لور
(۵۹ - مخ)

چې مې نوم په ژبه واخلي هسې خوښ یم

لکه ژغ د خلاصې وشي په بندیانو

(۱۸۰- مخ)

محشي ورته کښلي دي چې په دریمه او څلورمه نسخه کې (ږغ) ثبت دئ.

په دې بل بیت کې هم (ژغ) ثبت سوی دئ خو په حاشیه کې لیکلي دي چې په څلورمه خطي نسخه کې (ږغ) دئ.

د رسا ویښتلي کله توان د ژغ وي

په فراق کې ناره مه وهه له باړه

(۲۹۱- مخ)

**غږ:**

په عالم د مجنون غږ دی، مرد مې بوله

په محشر که ځنې وړاندې خپل علم وړم

(۱۳۵- مخ)

***

**ږو (قسمیه):**

**خوشحال خان وایي:**

په وفا د عاشقانو

د معشوقو په جفا ږو[1]

د وصال په سل خوښیه

د هجران په زر بلا ږو

(۱۷۲- مخ)

---

[1] په ارمغان خوشحال (۴۸۳ مخ) کې د دې ټولې غزلې د پای قافیوي (ږو) په (گو)

دا کلمه د (قسم خوړلو) په مفهوم کارېږي. (په) دلته د (قَسَمیه) کلمې وظیفه سر ته رسوي او له ظرفي یا استعلایي آداتو سره باید مغالطه نه سي. په فارسي ژبه کي (ب) د قسَمیه توري کار ورکوي.

بجان دوست که غم پرده بر شما نه درد
گـــر اعتماد بر الطاف کار ساز کنید

دلته (بجان دوست) معنا (د دوست په سر مي دي قسم وي).
په عربي کي (واو) د قسمیه توري له پاره راځي:
"والعصر"، "والشمس" یعني قسم مي دي په مازیگر وي، قسم مي دي په لمر وي.
د (ږو) کلمه د کندهاریو شاعرانو په کلام کي سته:
مولوي عبدالغفار بریالی وایي:

ږو پــه نــاز د دلــــبرانو
ږو پــه آه د ســوخته گــانو
ږو پــه کــبر د خـــوبانو
ږو پـــه درد د بېـــدلانو
(اهار– ۹۵مخ)

د میوند د ډاگ قهرماني، ملالي ویلي دي:

که په میوند کي شهید نه سوې
خدای ږو لالیه بې ننگۍ ته دي ساتینه

(ځیني کسان دا لنډۍ د "ږو" کلمې داستعمال له وجهي جعلي بولي او وایي چي "ږو" د دې سیمي لغت نه دئ. مگر تاسي د ارواښاد بریالي په شعر کي ولوستل چي هغه مرحوم ئې په رواني سره کاروي. "ږو" کلمه له کندهاره تر اټکه د استعمال پراخه

اورشو لري. حمید مومند په نیرنګ عشق کي پنځه ویشت بیته د (ړو) پر قافیه باندی سره تړلي دي (وګ کلیات – ۴۳۰، ۴۳۲ مخونه).

خوشحال خان بل ځای ویلي دي:

چې سر په مخ کې کیږدې، زړه دې ډوب په اندېښنو شي
په خدای ړو که خبر ئې د خاصانو له سجوده
(۲۰۸– مخ)

یا:

مرګ د رقیبانو بل ژوندون د حبیبانو
خدای ړو په هنګام د وصل کیږي دا دوه کاره
(۲۱۷– مخ)

هجري ویلي دي:

نور به تېر عمر رانه یشي په رب ړو
که نظر تغیر کسیو په ژړا کړم
(۸۴ – مخ)

په متن کي "... په رب ګو" لیکل سوی ده چي په قطعي ډول ئې د اشرف خان هجري خپل وینګ نه سو بللای.

پوهاند دوکتور زیار صاحب په (ګ) سره د (ړ) اړول له معیاریت ځخه سرغړونه بولي او کړی ئې (وګ: لیکلاربود – ۵۲مخ)

***

سرړه:

د کندهار په لهجه کي د غره د مړه ښځه "سیرړه" بولي (وګ: ښکار او کندهار – ۳۳مخ). خوشحال خان ئې د "سرړه" په شکل لیکي:

زرکه دې لېرې له بازو ګرځي
**سروه** دې لېرې له پرانګه غورځي
ګنه بڼې به ئې په پورته غورځي
په څوکه کښېوزي نوره به پرځي
(رباعيات — ۲۰۰مخ)

**په سواتنامه کي لولو:**

هم ګاوز، بزونه، **سرزې** هم کوته پايي
اما ورکې کړې توپچيانو څه به وايي
(۸ — مخ)

***

**سپېږمې:**

**د پزي غارو ته وايي. د کندهارۍ لهجې وينګ ئې (سږمې) او د ځينو لهجو تلفظ ئې (سپېږمې) دئ. خوشحال خان ئې د لوېديځي لهجې وينګ ته نزدې کاروي.**

**خوشحال وايي:**

په عطرو ډوبه هغه خوش رويه
راغله ناګاهه له يوه سويه
تمامه شپه ئې راسره تېره کړه
**سپېږمې** مې ډکې دی د دی له بويه
(رباعيات — ۴۷مخ)

**د پښتو په ځينو لهجو کي سپېږمې ورته وايي. په ارمغان خوشحال کي هم يو ځای په همدې بڼه ثبت دي:**

دارچيني د پرمهرې سره لازم دي
د **سپېږمو** نسوار ئې يوسي رنځ له سره
(ارمغان — ۸۰ مخ)

دغه نصوار وته په کندهار کي د "پزي نصوار" وايي.

کندهاری مخلص وايي:

پر تندي دي خولی ایښیده په ناز
نه خبرېږي په دربي د لوړ جهاز
هغه وخت به در ځرگند سي خپل همت
چي دي بوی په سږمو ننوزي د غاز

(۱۶۶- مخ)

***

غېږ:

د کندهار په لهجه کي همداسي ده خو په نورو لهجو کي (غېږه) ویله کیږي.

میرزا خان انصاري ویلي دي:

د عالم هنر به واړه پرې تمام کړم
که سرکښ خاطر په غېږ کي ونیسمه

(۱۸۴- مخ)

شمس الدين کاکړ ویلي دي:

بې کامه بې زبان لکه رباب د یار په غېږ کښني
هردم کوم له شوقه تن تناتناتنا

(۳۰ - مخ)

***

کریږه:

کندهاریان ئې (کرږه) بولي. حمید وايي:

چې "حمید" د یار له غم کا سوې کریږه
د پیریانو غوني زیږ دېوان په دوک شي

(کلیات - ۲۸۹مخ)

***

**کړان (کړیان) :**

(کوړ) هغه ځیرونکی حیوان دئ، چي په پارسي ئې (کفتار) بولي. د کندهار په لهجه کي ئې جمع (کړیان) ده او خوشحال خان ئې هم دې ته ورته کاروي. په فراقنامه کي لولو :

شغالان، گرگان، **کړان**
پاس پښې ږدي په گلان
(۴۵ – مخ)

***

**کړل – کړلی :**

یوه یا کار، حرکت بدشگونه گڼل، یا په یوه عیب سره ځان ځني ژغورل. دا لغت په لوېدیځه لهجه کي پوره عمومیت لري خو په ختیځه کي ئې ځای "غندلی" نیولی دئ.

خوشحال وایي :

بل ته شړلی، لېږلی تا یم
یا په دا کارکښې **کړلی** تا یم
چه ستا په نه دید د ځنکندن شوم
که مې ته نه وژنې وژلی تا یم
(رباعیات – ۲۰ مخ)

په دستارنامه کي د لور د ودولو په برخه کي لولو :

"... چه په اصل په نسب کړلی نه وي، د دین د صلاحیت په حُلیه متحلي وي، وهسې سړي دي ور کوله شي" (۱۳۱– مخ).

میرزاخان انصاري وایي :

په طلب ئې نحسیت له ستوریو واخیست
په ښه خوی ئې هیڅ ساعن ؟ نه دی **کږلی**
(۴۷- مخ)

**د کندهار شاعر شمس الدین کاکړ ویلي دي:**

څو به شماري منجمان زما د وصل کوکب
څو به له لاسه د فلک په بخت **کږلی** گرزم
(۸۷ – مخ)

***

**مږ:**

**نر پسه ته ویل کیږي. د کندهار په لهجه کي د (مږ) ښځین شکل (میږ) ده، چي په نورو لهجو کي ئې (میږه) بولي.**

**عبدالقادر خان وايي:**

ودانـي د کائنـات ده پـه دري څـیزه
اول **مږ**، دویـم غـنم، دریـم عنب دی
(۲۵۹- مخ)

***

**وږی:**

**په کندهار کي (وږی) د انگورو یا غنمو (خوشې) ته وايي. خو زیاتره د غنمو له پاره کارېږي. د اومو انگورو له پاره (ډنډوری)، چي انگور ئې خوړل سوي وي او د پخوله پاره د (واښکي) کلمه رواج لري. خوشحال خان د (وږي) کلمه د انگورو له پاره راوړې ده:**

زړه مـې سـر تـر پایـه واړه آبلـه دی
پـه فـراق کـې، لکـه **وږی** د انگـور
(۵۴ – مخ)

***

## ۳، ۶: د (ڼ) مشترکات:

**ورونه:**

خوشحال د "ورور" جمع "ورونه"او د تذکیر آلت دواړه په (ڼ) لیکي او دا تلفظ ئې له کندهاري وینگ سره یو شان دئ. په ختیځو لهجو کي دا دواړه لغتونه په نون ویل کېږي.

ځو تجربه نه کړې خپل زویه **ورونه**
هو مره د دیو په کار مه مونه
زویه هغه دي چه ځان ځرگند کا
گنه بهتر دي له زویه لونه

(رباعیات – ۶۲مخ)

د پښتو په نورو لهجو کي ورونه په نون ویل کېږي. زیار صاحب وایي چي خوشال "ورونه او غین له کښېني گړدود سره سم په (ڼ) پای ته رسوي" (وگ: د خوشحال ادبي پښتو – ۳۸مخ). د لیکلار بسود په (۲۷۷مخ) کي د نون شکل د لهجوي ارجحیت تر اغېزې لاندي کره بلل سوی دئ.

خوشحال خان په فراقنامه کي ویلي دي:

سکه **وروڼې** قتل کړي
ده ئې مال گنجونه وړي

(۶۶ – مخ)

په حاشیه کې ورته کښلي دي " وروڼې = وروڼه ئې ".

عبدالقادر خان وایي:

بې عمله به دي ښه په چا و نه شي
نه په **وروڼو** په پلارونو نه په ترو

(۱۳۶ – مخ)

دغه راز په (۲۷۱مخ، ۳۶۹مخ، ...) کې هم وروڼه په (ڼ) کښل سوي دي. حمید هم د (ڼ) په برخه کې د ختکو لار اخیستې ده. دی وايي:

د یار یار د خپلو خپل د **وروڼو** ورور یم
لکه و مه هغه شان په خپل انځور یم
(۳۲۷-مخ)

***

انګڼ:

په لوېدیځه لهجه کې همداسې ویل کېږي، خو ختیځه لهجه لکه د (ښ) له آواز څخه چې ځان پېچي، د کلمې د پای له (ڼ) څخه هم حتی الوسع ځان ساتي او په دې لړ کی ئې د (انګڼ) پر ځای (انګړ) ډېر کاروي.

د خوشحال خان په کلام کې دواړه شکله لیدل کېږي. یو ئې هرومرو د کاتب لاسوهنه ده. تاریخي و ژبني قراین پر دې باندي دلالت کوي، چې (انګړ) به د کاتب د تصرف نتیجه وي. خوشحال وايي:

ځان و زړه مې هم چاپېر درسره درومي اې نګارې!
چې ګهې په شین شین په **انګڼ** کې شې روانه
(۲۴۹-مخ)

بل ځای وايي:

رقیبان دې لکه سپي دي په کوڅه کې
چې **انګړ** دې پاکیزه شي، واړه چخ کړه
(۲۶۵-مخ)

***

# څلورم فصل

**۴، ۱: د کلاسیک ادب او لوېدیځې لهجې ګډ لغتونه:**

په دې برخه کې به هغه لغتونه چې په کلاسیکو ادبیاتو کې راغلي او اوس په لوېدیځه لهجه کې ژوندي پاته دي، د الفبې په ترتیب راوړل سي.

***

**آب بازي، اوبازي:**

په لوېدیځه لهجه کي "آب بازي" تر "لامبو" زیاته عامه ده. د لامبو یو بل شکل "لمباو" دئ، چي د کندهار په زلمیانو کي رواج لري. خوشحال خان د آب بازۍ او لامبو دواړه لغتونه کار کړي دي.

خوشحال خان په دستارنامه کي لیکي:

"دا دوه هنره یاد شوی، یو تیر اندازی بل آب بازی ... که آب بازی چا نه زده وی، لوئی نقصان واقع کیږی ..." (دستارنامه – ۴۸مخ) په همدې بحث کې د "لانبوزن" لغت هم کاروي، چي په ورپسې مخ کي ئې د "لامبوزن" په شکل کښلی دئ.(په کابل چاپ کی دواړه د "لامبوزن" په شکل دي)

بیا د شک گرداب هر گوره دی عمیقه

(۱۶۹- مخ)

***

**آهنگر:**

په مروجو پښتو قاموسو کي (آهنگر) ته د (پښ) معنا لیکله سوې ده. خوشحال خان د آهنگر لغت راوړي. زه د ده په کلام کي د "پښ" پر لغت نه یم پېښ سوی خو د اشرف خان هجري په دېوان کي پښ د "پهش" په بڼه راغلی دئ.

لکه اور د **پهش** له دمه زیاده شي

هغه زړه چي مبتلاوي په دلبرو

(۵۰۵ – مخ)

خوشحال خان لیکي: "په دا شان هنر د آهن گر چه توره، نیزه، چاړه، زغره چه آلات د محاربات دي، تعلق په دیو لري" (دستارنامه – ۱۴مخ، دغه راز ۳۰، ۳۱ مخونه).

په کندهارۍ لهجه کي آهنگر (اېینگر) او (پښ) یو شه توپیر سره لري. پښ زیاتره د اسانو نالونه او دې ته ورته شیان جوړوي، خو آهنگر چړې، ارې، د تاکبیرۍ ارې، د پسو د سکوستلو وسایل، قلفان او نور جوړوي. په کلیوالي ژوندانه کښي پښ دغه ټول کارونه کوي.

خوشحال هم د آهنگرۍ په هنر کي همدا شیان شامل ګڼي.

رحمان هم د "آهنگر" کلمه کاروي:

یا تـــنور دی یا دو کان د **آهـــنگرو**
چي په عشق کښي تصور کړم خپل قلوب
(۲۴-مخ)

**عبدالقادر خان وایي:**

همنشین دي نغمه نه مـو مي بې زیانه
په بد فـعل بد خصلت د کـان د **پښ** ئې
(۳۵۹-مخ)

**آهنگر ته په کندهار کي گگر هم ویل کېږي. "سل د زرگر یو د گگر" چي مراد ئې سوټک دئ. یعني د زرگر سل سوټکه (چکوښه) د آهنگر له یوه سوټک سره برابر دي.**

***

**اَدوم:**

**دالغت د خوشحال خان په کلام کي داسي لولو:**

څه به هر یوه ته حال وایې خوشـحاله
د لیـــمو په حال خـبر کله **ادوم** دئ
(۳۴۸-مخ)

**اَدوم کلمه د کندهار په لهجه کي ژوندۍ کلمه ده او معمولاً د حیوان (ثاروي) د پښې هغي برخي ته ویل کېږي، چي تر زنگانه پورته ده او په پارسي ئې (ران) بولي. د انسان د پښې دې برخي ته (ورون) وایي*. د ادوم لغت کله کله د انسان له پاره هم کارېږي. د کندهار په لهجه کي د انسان د پښې بېلابېلي برخي له گوتو څخه لوړې دا نومونه لري:**

---

* ورون ئې سرېږنه برخه یا خوا ده، او ادوم ئې لاندنۍ برخه یا خوا ده. د بدن و

- د پښې په خپړ (خپړه) کې: ګوتي، تله، پونده، بجلکه، د پښې بند.
- د پښې تر بند پورته: پونډۍ (پړکی)، زنګون، ورون، ښنګښر، غبانده*.

د پښتو په نورو لهجوکي اَدوم ته (پتون) وايي. لکه د ادوم مغيره شکل چي (اَدامه) دئ دغه راز د (پتون) مغيره شکل (پتانه) دئ.

حميد وايي:

چې شبنم غوندې شبګير واخيست په سرما
کېښود سر په **پتانه** د سمنبر ما
(کليات -۸ مخ)

ما يو وخت خپل د پوهنځي استاد جاج صاحب ته خپل يو شعر ولووست:

صوفي موږ منعه کولو د ښايسته وو له ديدنه
منافق ته چي ښه ځير سوم سر ئې پروت وو پر **ورانه**

استاد راته وويل چي د (ورانه) پر ځای (په پتانه) ورواچوه. زما خيال سو، چي د دوی په لهجه کي دغه کلمه عامه نه وه.

په انګريزي ژبه د چرګانو ادوم ته (drum stick) وايي يعني د ډول لرګی. د کندهار په لهجه کي له اوسپني څخه جوړي سوي دغه راز وسلې ته (خوردوم - خُردم) وايي.

خوشحال د ادم خېلو اپريديو د توصيف په ترڅ کي د"پنډۍ" لغت داسي راوړی دئ:

په وجـود کې لکه هاله ويښتـو خلاصې
پښې کمکی، غونډې پنډۍ پهن سرينې
(۴۶۰ - مخ)

***

ارکه:

خوشحال خان د کاله (کالا) پانۍ د هېليو په بيان کې د "ارکه" لغت راوړی دئ.

پـه ارکـه وو مـالامـال دي
سـونا هم پکې خـال خـال دي
(فراقنامه - ۴۷مخ)

د (ارکه) په نامه مرغه ماته نه دئ رامعلوم او نه مي په مروجو قاموسونو کي موندلی دئ او د خوشحال فرهنگ چي د معاون سرمحقق محمد اسمعيل سره بن په قلم په ۱۳۶۵ کال په کابل کي خپور سوی دئ، د نومونو په برخه کي ئې راوړی دئ او ورته کښلي ئې دي: "يو کوچنی مرغی ده چي د باز په واسطه ښکار کيږي". په دې قاموس کي لکه نورو نومونو ته چي لاتيني نوم هم کښل سوی وي، د دغه نامه لاتيني معادل نسته، ځکه ئې سمه څېړنه راته ميسره نه ده.

په کندهار کي هغو کوترو ته، چي په هوا کي بازۍ نه کوي او تر لوټن (ملاقي) کوترو غټې هم دي، (ارغه) کوتري وايي. ارغه کښته الووزي، او له کوره څخه ليري واټن ځي. لوټن د کور پر شاؤخوا لوړې الووزي. رنگونه ئې ځله بېل دي.

***

**ارهټ:**

ارهټ، ارهڼ هغه کوهي (څاه*) ته ويل کيږي چي د لويو مځکو د اوبولو (خړوبولو) په نيامت کيندل سوي وي. دغه راز کوهي ته اوس (باوړۍ) وايي**. دا کلمه پاکستان ته د افغانانو د وروستي مهاجرت په دوران کي د کندهار لهجې ته راغلې ده. پخوا دا کلمه د ډيورنډ تر پولي ها خوا ته مااوريدلې وه. بايد ووايم چي د کندهار په عامه محاوره کي دا کلمه د (ارهڼ) په شکل ويله کيږي. د کندهاريو شاعرانو په ديوانو کي چی د (ارهټ) په شکل ثبت ده، غالباً به د کلاسيک ادب د خطي ديوانو همدا راز ثبت اغيزه پکښې کړې وي. ميرزا خان وايي:

د وحدت په ځان له ځان سره بازي ده
د کثرت نوم ئې **ارهټ** کړيا گرداب شو
(۹۷- مخ)

ميرزا حنان بارکزی وايي:

ماتول او سازول د فلک کار دئ
زنده سر واړه منگي دي **ارهټ**
(۵۰ - مخ)

شمس الدين کاکړ وايي:

کښت د عمر مي سيراب په باران نه شو
اوبوم ئې د سرو سترگو په **ارهټ**
(۴۲- مخ)

---

* په کندهار کښي څاه بلل کيږي او جمع ئې څئان ده (ع. پالوال).
** ارهڼ ژور وي او لوی وي. باوړۍ ئې د اوبو کښلو او وښتونۍ تخنيک دئ چي د

***

**استوګنه:**

استوګنه د (اوسېدلو) په معنا لرغونې کلمه ده. دا کلمه په پخوانیو متونو کې د "استوګه" په شکل راغلې ده. د کندهار په لهجه کې هم پخوا "استوګه" رواج وه خو اوس ئې پر ځای "استوګنه" ویله کیږي.

اشرف خان هجري ویلي دي:

په ادب په نېکې مټ کوه خټکه!
د **استوګې** ځای دلې نشته سفر دی
(۱۹۲ – مخ)

بل ځای ئې بیا د استوګنې په شکل راوړی خو هلته بیا کاتب په (ړ) کښلی دئ.

رُخ دې نه دی مانېٔ مه شکوه فلک ته
د **استوړنې** مکان ستا نس د تُراب دی
(۵۲۵ – مخ)

د رحمان بابا په دېوان کې هم "استوړنه " چې د "استوګنه" ناسمه لیکنه ده، زیاته راغلې ده.

په تـوده زمکه **استوړنه** ده مشکله
څه به زیست شي له رحمان سره د چا
(۱۲۶ – مخ)

په ۱۹۱مخ کې ئې بیا په (ګ) کښلې ده.

ښه **استوګنه** د دوه ورونو سره نه شي
بلـکه اخلي یو تر بله آزارونه

مرحوم قلندر مومند په پټه خزانه کې د استوګنې کلمه د دغه

کتاب د جعلیت یو دلیل بولي چې نور پوهان ورسره موافق نه دي.
استوګنه لغت د پتمې خزانې تر کښلو پخوا په پښتو ادب کې مروج
وو.

***

**الابلا:**

هر څه ته لاس اچول، حلالي و مرداري سره ګډول، ...

په ظفراللغات کې ئې د دې ویې معنا داسې کښلې ده:
"بیکاره او بې ښې څیزونه، ګډ ګا ډیره څیزونه، ...، درد، رنج،
مصیبت"

د کندهار ښځمنې وایي: "الابلا به وکم، زوی و لوربه په ماړه
کم، د مولا جواب به څه کم".

خوشحال خان ویلي دي:

که مثال ئې په دنیا غواړې له مانه
چې **الابلا** پکې وي هغه ډنډ دی
(۳۳۸ - مخ)

یا:

هره ورځ د دې فانې دنیا د پاره
زرفتنې، **الابلا**، دغادغل کړې
(۴۴۴- مخ)

پارسي ژبې هغه وخت چې غواړي د یوه کار له ذمه واری او
مسئولیت څخه ځان وکاږي نو وایي " الابلا، بگردن ملا"*.

***

---

* د دغه ترکیب "الا" ښایي "الله" وي، مثبت، او "بلا" ئې منفي ده. ملا لا هم ورکښې
ایستل سوی دی (ع. پالوال).

**الپته*:**

د سر له خوا د څلورو تورو په زوَر (فتحه) تلفظ کېږي او فشار يې پر وروستۍ څپه دئ.

دا لغت د کندهار په لهجه کې د (وارخطا، سرگردانه) په معنا ژوندی دئ او په ورځنۍ محاوره کې زيات کارېږي. ظفراللغات يې هم دې ته ورته معناوي کښلي دي. په کلاسيک ادب کې ځای ځای د عربيت تر اغېزې لاندې "الفته" ليکل سوی وي.

خوشحال خان ويلي دي:

ښه خو دا چې ئې برقع په مخ پرته ده
او که نه پرې به وګړي **الفته** شي
(۳۷۱- مخ)

يا:

که د مخ ښايست ئې دا دی چې ليده شي
لا به ما غوندې پرې ډير **الفته** کېږي
(۳۷۳ - مخ)

په دستارنامه کې هم "الفته" راغلې ده.

"لږ چه تازه دم وی، بهتر تر هغو ډيرو چه ستړی آلفته وی" (۹۵ - مخ). اشرف خان هجري وايي:

**الفته** قيس ئې هسې رنګ جدا کا
چه د تور قفس بندی غم د ليلا کا
(۴ - مخ)

په وړاندنيو بيتونو کښې د الوی سوي، کباب سوي مانا سمه

---

* [illegible]

ورسره لګیږي. تلفظ ئې هم بېل دئ – لام ئې پېښ اخلي.

***

**انا:**

په کندهار کي د مور یا پلار مور ته (انا) وایي. په ختیځه لهجه کي ئې (نیا) بولي.

حمید مومند ویلي دي:

چې، **انا**! په فلاني کلي کي مقامه
یوه جن ده ګل اندامه وفا نامه
(کلیات – ۵۰۹ مخ)

***

**اوتاک:**

د اوتاک لغت په کلاسیک ادب کي هغه راز راغلی دئ لکه په لوېدیځه لهجه کي چي کارېږي. اوتاک د کندهار په لهجه کي تر "خوني، اطاق" پراخه معنا لري. پخوا به په لوی اختر کي خلک د شاه اغا مېلې ته وتل. د هري ډلي اوتاک به معلوم وو. د شالمار په مېلو کي به هم د هر کلي اوتاکونه جلا ول. په اوتاک کي به ئې یوه برخه د اشپزۍ له پاره وه، نغري به ئې پکښې جوړ کړي ول، بله برخه به د ناستي ځای وو، کمبلي به پکښې اواري وې او بسترې به شاوخوا پرتې وي. د شپې د خوب له پاره ئې هم له دغه ځایه کار اخیست. د لمانځه له پاره به ئې بله برخه ټاکلې وه. دې ټولو ته ئې په مجموع کي اوتاک وایه. د روسانو د اشغال پر وخت د کندهار په ماله جات او ارغنداو او نورو سیمو کي د مجاهدینو اوتاکونه ول.

په پښتو کلاسیک ادب کي د اوتاک لغت زیات راغلی دئ. په دستارنامه کي "اسباب معیشت" تر عنوان لاندي داسي لولو:

"بل اوتاک یعنې د استوګنې ځای" (۱۴۵ - مخ)؛

په فراقنامه کې وايي:

اوس ئې رخ د ملنګـــۍ او د دوهــۍ دی
د خوشحال چې سرای **اوتاک** و واړه تېر شه

(۷- مخ)

بل ځای:

هغـــه ملـــک واړه **اوتـــاک** دی
چـــې پکـــې کـــبنلي بختنـــاک[1] دی

(۳۸- مخ)

د میرزا حنان بارکزي په دېوان کې اوتاک کلمه په قاف لیکل سوې ده خو مراد ئې (خونه، کوټه، اطاق) نه دئ، بلکې مطلب ئې هغه راز اوتاک دئ چې کلاسیکو شاعرانو پخپلو اشعارو کې راوړی دئ. دی وايي:

لکـه ځغلـي لېونی سـپی لـه **اوتاقـه**
هـــسې ورک شـوه رقیبـان د شـکرلب

(۴۴- مخ)

پوهاند زیار صاحب چې د اوتاک کلمه د عربي (اطاق) ګڼلې ده (د خوشال ادبي پښتو - ۳۶مخ) د تأمل وړ خبره ده. د پښتو (اوتاک) غالباً له تورکي ژبې څخه راغلی دخیل لغت دئ. په تورکي کې "اتاق" د خوني او خېمې په معنا کارېږي او وايي چې کله کله ئې د 'اتاغ' په شکل هم تلفظ کوي (وګ: غیاث اللغات). زما خیال دئ ته چې د عربي "اطاق" به هم د تورکي "اتاق" معرب

---

[1] بختناک د خوشحال خان ...

شکل وي څکه په قرآن کي د "اطاق" کلمه نه ده راغلې (وګ: معجم الفهرس- د الف رديف. هورې تاسي د "اطاق" کلمه نه مومی).

دوکتور هاشميان صاحب "اتاق" دري ژبي ته له ترکي څخه راغلې کلمه بولي (وګ: آئينه افغانستان، شماره مسلسل: ۱۱۸ - صفحه ۳۳).

***

**اوستری:**

آخري، وروستی.

قاموسو هم په همدې معنا ثبت کړی دئ. مذکر حالت ئې (اوستری) دئ لکه: اوستری ديدن

دا لغت په کندهار کي په همدې شکل ژوندی کلمه ده. يو متل دئ چي وايي "اوستری ورځ نامرده ده". "اوستری خور" = جمادی الآخر.

حميد مومند ويلي دي:

راشه که هوا د **اوستري** ديد لرې بې رحمه
مړستا د ديدن ئې سره کفن کي ونغاړه
(کليات – ۲۲۳مخ)

***

**ايځې:**

په ظفراللغات کي دې لغت ته کښلي دي: "په ټکو ويل، مجازاً يوه خبره ښه يادول" او په مثال کي د خوشحال خان همدا بيت چي ما هم رااخيستی دئ، راوړی دئ.

د کندهار په لهجه کي کوچنيانو ته د "قاعده بغدادي" د تدريسولو په وخت کي د کلمو د حرکاتو له مخي د هغو د تلفظ زده کولو يوې طريقې ته (ايزگی) ويله کېږي. د مثال په توگه د "معلم" کلمې تلفظ داسي ورته ښوول کېږي "ميمه عين زرمع، لامه ميم زيرليم، معلم" دا طريقه د تلفظ زده کولو يوه پخوانۍ اوږده تخنيکي قاعده وه چي اوس لا هم د کورني تعليم په نصاب کي شامله ده.

د خوشحال خان په کلام کي دې عمل ته "ايځي" ويل سوی دئ. (ايځي) او (ايزگي) سره ورته لغتونه دي*.

خوشحال وايي:

هغه کوم سبق د ناز او د نياز دی
چې وما ئې په **ايځي** نه دی راکړی
(۳۵۲- مخ)

دغه راز لوست ته "په زوَر و زېر ويل" اصطلاح هم په کندهار کي سته.

***

## ايداد:

(ايداد) په لوېديځه لهجه کي د (سرزنش، سزا، ترټل) په معناعام لغت دئ. علامه رشاد رحمة الله عليه د امير شېرعليخان او سردار محمدامين خان د مخالفت په برخه کي د امير له خولې ليکلي دي: "... سردار محمدامين ته ووايه زما ستا سپکاوی نه دئ هېر ... که زه په بري کابل ته راستون سوم، ايداد به در کړم (د کندهار

---

* دغه ايځي به ښايي له هيجايي څخه اخسته سوئ وي (ع. پالوال).

یاداښتونه – ۱۸۲مخ).

ډاکټر پالوال صاحب یو ځای کښلي دي: "څنګه چې ساګزو له انګلیسانو سره په جنګ کښې د سرغنه محمدایوب ملاتړ وکړ، نو تر بري وروسته، امیر عبدالرحمان خان، چې په کندهار کښې په تور امیر سره شهرت لري، ډیری ساکزیان ئې په ایداد کښې له هلمند ناوې څخه د افغانستان و شمال ته فرار کړل" (معیاري پښتو – ۴۴مخ).

د کندهار ښځمني یوه وراشه لري: "مور و پلار مي وکړه ازارونه، ما خواري تې راکړه ایدادونه".

د خوشحال په شعر کي دا لغت څو واره راغلی دئ خو کاتبانو او ناسخانو ئې په لیکنه کي څو شکله (هداد، اهداد، احداد) ثبت کړي دي.

تـل ګریـوان پـه او ښکو لونـد، سـاړه آهونـه
چې خوشحال مین کېده دا ئې **هداد** دئ
(۳۵۲–مخ)

په حاشیه کې کښلي دي: "په دریمه کې (ایداد) په ارمغان، کلیاتو او دوهمه کې (احداد) دی".

یا بل ځای له پښتنو څخه د سر ټکولو په وخت کي وایي:

اول زه، دا نـــور د پـــسه
څو شته واړه د **احداد** دي
(۳۵۹ – مخ)

دې ځای ته مرتب هیڅ رازحاشیه نه ده ورکړې او داسي ښکاري، چې د چاپي متونو ترتیبوونکي د دې کلمې په معنا کي مردود (شکمن) ول ځکه ئې همداسې بری ایښې دئ. کاتبانو او

ناسخانو د ایداد پر کلمه باندي د عربي "احداد" خیال کړی دئ. د عربي احداد د عبدالقادر خان ختک د دیوان (د ۱۳۶۸ش کال چاپ) په لغتنامه کي په "په جرم حد لګول، سزا ورکول، تعزیر" معنا سوی دئ. دا معناخو له ایداد سره هم نزدېکت لري خو د پښتو ایداد مستقل او په پښتو کي مروج لغت دئ او دعمومي عادت له مخي به عربي ګڼل سوی وي.

خو د دې خبري یادونه به هم په زړه پوري وي چي په قاموسو کي د (احداد) لغت په دغه معنا ثبت سوی نه دئ. په لغتنامه دهخدا کي د (احداد) لغت ته داسي لیکل سوی دي: "... سوګ داشتن زن بشوهر، ... باز ایستادن زن از زینت. جامه سوګ پوشیدن، ... تیز کردن کارد و امثال آن بسنګ وسوهان". یا:

ساقي نن د سرشاريه شراب راکړه
محتسب چې حاضر نه دی، څه **احداد** شي
(۴۱۸ – مخ)

دلته بیا فکر کوم له (ایداد) څخه (احداد) جوړ سوی دئ.

یا:

چې بل مخ وته نظر کړم دهداد شم
توري زلفې ئې دورې دي اویزاندي
(۴۲۹ – مخ)

(هداد) د (ایداد) مسخه سوی شکل دئ. په حاشیه کي ئې ورته کښلي دي " په لومړی کې (احداد) او په دوهمه او دریمه کې (اهداد) دی". یا:

په ګل چه هومره مینه بلبل کا
سیل د بلبلو باندي غلغل کا

د ښايسته ؤ عاشقان ډېر دي
عالم به ولي **احداد** د ګل کا
(د خوشحال رباعيات – ۲مخ)

**د رحمان بابا په ديوان کي هم د "اهداد" په شکل ثبت دئ.**

هر اهداد چه راکاوه شي ستا په مينه
په ليمه ځما قبول هغه **اهداد** دی
(۲۴۱ مخ او دغه راز ۲۵۹مخ)

**هجري ويلي دي:**

په تنګی مي ئې زړه يوو ړ اوس مي سرو ړي
چي دې مست مي ورکاوه دا لوی **هداد** دی
(۱۹۹– مخ)

**عبدالقادر خان وايي:**

نور چي بوس و کنار کا عيب ئې نه وي
زه چي تش کاته کوم زما **اهداد** شي
(۲۹۶– مخ)

**په حاشيه کي ئې ورته کښلي دي: "ک: (هيداد)، (پ،آ): احداد".**

**حميد مومند وايي:**

چې په ما دي هم له ما دي
پرې ناحق د بل **ايداد** کړم
(کليات – ۱۴۴مخ)

**يا:**

چې مې کړی خود کرده په ځان فساد دی
هر چې شومه ښه چې شوم دا مې **اهداد** دی

**کامګار خټک وايي:**

وابـه نـه ورږم د دابـرو لـه جـواره
خپل پـردي کـه همګـي زمـا **اهداد** کـه
(۱۱۳- مخ)

په دې باب نور مثالونه هم سته. "احداد، اهداد، هداد، هيداد" ټول د "ايداد" مختلفي املاوي دي.

دا لغت د راحت زاخيلي په لغات افغاني او د وزير محمد ګل خان په پښتو سيند کي نسته او له دې څخه څوک ويلای سي، چي په ختيځو لهجو کي ئې رواج عام نه وو. ظفراللغات بيا اخيستی دئ او زما يقين دئ چي د هغه ماخذ به هم کلاسيک متون وي نه عامه محاوره.

***

**ايسېدل:**

د کندهار په لهجه کي د (ښکاره کېدل، معلومېدل) پر ځای د (ايسېدل) کلمه زياته باب ده. خو په " ښه مي نه ايسې" عبارت کي ئې معنا دا ده چي " ښه مي نه درڅه راځي"، " بد مي په نظر راځي". دا کلمه په کلاسيک ادب کي سته خو اوس ئې د استعمال هڅه کمه سوې ده.

حميد مومند ويلي دي:

هر خاکسار چې خاکساري نه کا ښه نه کا
هر څوک ښه **ايسي** په خپل رسم و رواج
(کليات - ۵۳ مخ)

**بل ځای وايي:**

لکه شوم چې په خوړونکي سپي نازېږي
هسې ښه ایسي د ترکو رقیبان شوخ
(۶۰- مخ)

**میرزاخان انصاري وایي:**

مینه نــه شي بې دیدنه
دیدن ښه **ایسي** په مینه
(۱۹۰- مخ)

**مولوي بریالی وایي:**

زوی چې دم د بې لارۍ په ځان کي پوکئ
نــورزیاتي ورتــه بد ایسي د خپل پلار مخ
ما چې دم د شــوخو سترګو پر ځان پوکئ
ته وا څه به مي ښــــه **ایسي** د بل کار مخ
(اهار – ۲۶مخ)

***

**بارخو:**

په لوېدیځه لهجه کي (باړخو) د (رخسار) له پاره کارېږي. د پښتو په نورو لهجو کي ورته (اننګي) وایي. خوشحال خان خټک خال خال (اننګي) لغت کاروي خو د (بارخو) کلمې د استعمال پله ئې درنه ده. خوشحال خان پخپله جوړه کړې الفبې کي د (ړ) توري له پاره پر (ر) باندي همزه ږدي. ما ته دا فکر رالوېږي چې په "باړخو" کي به کاتبانو دغي همزې ته سمه پاملرنه نه وي کړې. خو دا صرف یو حدس دئ. دا څو ځایه به په ګډه سره ولولو:

گل د لاله ښه دی، راته وایه که بارخوئې؟
ستا زیبا **بارخو** به له گیاه کړم برابر؟
(۶۰- مخ)

یا:

په **بارخو** دې مار حلقه شو که صهبا مې
ستا د تورو زلفو خولې وته سر مات کړ
(۷۲ - مخ)

د خوشحال رباعیات (د پښتو ټولني چاپ) کي ئې "باړخو" کښلی دئ.

**باړخو** ئې نه دی گل د گلاب دی
زلفې ئې طعن د مشک ناب دی
راشه که دواړه شونډې ئې گورې
چي پرې مستیږی هغه شراب دی
(رباعیات - ۱۲۳مخ)

د خوشحال خان او رحمان بابا په دېوانو کي ځای ځای د (بارِخو) پر ځای (اننګي) ورلوېدلی دئ چي ښاغلي پالوال صاحب ئې تفصیلي یادونه او هغه ورانی بیان کړی دئ، چي د دغي لاسوهني له اسیته د رحمان په شعر کي پیښ سوی دئ. (وګ: معیاري پښتو - ۲۳۳مخ)

***

**برایي- برایه، تېره شپه:**

دا لغت په لوېدیځه لهجه کي ډېر عام دئ او په ختیځه لهجه کي ئې پر ځای "بېګاه" ویل کېږي. په کلاسیک ادب کي ئې
مثالونه

د دوو سترګو کسي غوا ړم مونده نشي
شايد يو ړه **برايه** دغه سيلاب ستا
(۲۷۷- مخ)

بل ځای:
**برايه** غمان؟ راغلی د هجران وو
دلښکرو حد ئې نه وه بې پايان وو
(۴۲۲- مخ)

عبدالقادر خان ويلي دي:
**برايه** مي اشنا وليده په خوب کي
په ژړا مي کړ په اوښکو بستر تر
(۵۶ - مخ)

حميد مومند وايي:
لا يو ښکلی ګل اندام چې شاهد نام و
**برايي** زمونږ په کلي کي مقام و
(کليات - ۴۹۶مخ)

***

برقه، برقع:
دا کلمه او جامه پښتنو ته له بلي خوا راغلې ده. کلمات ئې
ټول فارسي، مغولي او ترکي دي. په فراقنامه کي لولو:
ښه خو دا چې ئې **برقع** پر مخ پرته وي
او کنه پرې به وګړي الفته شي
(۱۵- مخ)

**هجري ويلي دي:**

دبدبه د نمر باطله هغه دم شي
چه سر گنده تر **برقې** د مخ ضيا کا
(۱۰- مخ)

***

**برمنډ (لڅ، لوڅ):**

**خوشحال خان ويلي دی:**

هومره بلا دي وتا ته پنډې
چې شمارئې نشته پټې **برمنډې**
گوره په کومه بلا به سر شي
چې پکښې ته گرځې په منډې منډې
(ارمغان - ۱۲۷مخ)

**عبدالقادر خان وايي:**

پښې **برمنډې** سر برمنډ گرېوان پاره وي
په طلب ئې په ملکونو آواره وي
(۲۵۶- مخ)

**د کندهار په لهجه کې "برمنډ" رواج لري. مولوي صالح محمد هوتک وايي:**

مخ پر سره اور ورځه
لکه خونخور ورځه
د جنگ پر لور ورځه
**برمنډ** سر تور ورځه
(پاشلي ويناوي - ۷۹مخ)

**مولوي بريالی وايي:**

کې کاکل د کفر توره کـړه **برمنډه**
د صنعان به صحیح دین کړي ورغلط
(اهاړ – ۶۰مخ)

**کې = که ئې. (برمنډ) په نورو لهجو کي "بربنډ" دئ.**

**حمید وایي:**

هیڅ له شرمه راته مه وایه ناصحه
د **بربنډ** له اوبو څه اندېښنه باک
(کلیات – ۱۲۶مخ)




***

**برند، برنده***:

**د لومړي توري په سکون او د دوهم په زور (فتحه)، دا لغت په کندهار کي د صفت په شکل کارېږي. که له (ځوانۍ) سره راسي نو (برنده ځواني) د ځوانۍ اول ټاپې، د ځوانۍ د مستۍ شپې و ورځي معنا ورکوي. که له سترګو سره راسي نو بیا (برندي سترګي) د شوخو سترګو معنا ورکوي. دا لغت قاموسو اخیستی دئ او همدغه شاني معناوي ئې ورته کښلي دي. په کلاسیک ادب کي ئې هم په همدې معنا موندلای سو. هلته چي کله له "کښېنستل" سره یو ځای کار سي نو "برند کښېنستل" د مغرور کښېنستلو معنا ښندي. دغه راز کښېنستلو ته په کندهار کي "په اړه مار کښېنستل" وایي. اړه مار د (په ځان مغرور) معنا لري.**

**خوشحال خان په دستارنامه (۱۱مخ) کي ویلي دي: "څوک چه دستار تړي – د دستار په حقیقت دِ وپوهېږي – د دستار حق دِ**

---

*برند: د رند غوندي برګ – برګ کتل، رند (ع. یالو ال).

**وپیژني - قابلیت او لایقت دِ ئې حاصل کا - که قابلیت او لائقت ئې حاصل نه کا- دستار په سر کا - برند کښیني - دا هسې دستار، دستار باله نه شي".**

**برنده:**

**خوشحال خان وايي:**

چې سترګې په رنجو کړې، **برنده** کښیني خورې زلفې
چې غټې به درته ګوري یو یو مرد بویه بللی
(۳۲۲- مخ)

**په سواتنامه کي لولو:**

نوم په ځان باندې کیږده د عالمانو
په دا هسې علم **برند** کښیني ملا شي
(۳۴- مخ)

**یا:**

د خوشحال غوندې به مست ګرځي په میو
چې هوا د **برندو** سترګو د چا ستا وي
(۴۰۹- مخ)

**هجري ویلي دي:**

یوه سترګه یَم د ګنګ بله جمنا کړم
چه رایادې **برندې** سترګې د اشنا کړم
(۸۴- مخ)

**رحمان بابا وايي:**

وبه نه وینې د ترکو **برندي** سترګي
مګر ځان په خپلو وینو کشي سالو کړې
(۴۹- مخ)

د کندهار مولوي بريالي صاحب ويلي دي:

يا مي خيال د **برندو** سترګو سو په زړه کي
يا په برخه د بډای سو د دولت رنځ
(اهار – ۳۰ مخ)

په ظفراللغات کي ئې د " غصه ناک، سپين سترګي او بې حيا" معناوي هم ور ته کښلي دي. د دې معناوو مصداق ما نه په کلاسيک ادب کي موندلی دئ او نه مي پخپله لهجه کي. تر کومه ځايه چي ما څېړنه کړې ده. (برند، برنده) دواړه په مثبتو صفتو کي راځي.

***

**بدلي، سندري (غزلي، ترانې):**

مفرد ئې (بدله) ده. دا لغت په لوېديځ ګرد دود کي د (غزل) له پاره زيات کارېږي. نوی نسل اوس د (سندري) ويی هم کاروي خو په عامه محاوره، په تېره بيا د ښځمنو په خبرواترو کي (بدلي) لغت ډېر کارېږي. په ختيځ ګرد دود کي د (بدله) جمع په اوږده (ې) سره ليکي.

خوشحال خان وايي:

هو مره بدلې هو مره **سندرې**
تمامې نه شوې د عشق خبرې
فهم مې وکړ د عشق په کار کښې
لرې نژدې دی نژدې دی لرې
(رباعيات – ۲۸۰ مخ)

په دستارنامه کي د "ازدواج د معاشرت" په برخه کي راغلي دي:

"چي ميړه ئې غائب وي... **سندرې** بدلې دا دي نه وايي – حزن دلګيري دې پرې غالب وي." (۱۲۲ – مخ).

د سيد راحت الله راحت زاخيلي په لغات افغاني، د وزير محمدگل خان مومند په پښتو سيند او د ميا بهادرشاه ظفر کاکاخېل په ظفراللغات کي د دې لغت نسته والى پر دې خبره باندي دليل کېدلای سي، چي په ختيځو لهجو کي دا لغت دونه عام نه دئ چي قاموسو ته دې لار موندلې وي خو د خوشحال خان په ژبه کي دا لغت موجود وو.

***

**بوده:**

د بار وړونکي حيوان (خره، آس) په معنا په لوېديځه لهجه کي ژوندۍ کلمه ده. خوشحال خان ئې هم راوړي:

په هر نام چي دي رضا هغه مي بوله
آدم زاد، فرښته، پري، **بوده**، ليوه يم
(۱۲۵– مخ)

***

**بيهاڼ:**

د کندهار په لهجه کي بيهاڼ د آس بچی ته وايي. په نورو لهجو کي ئې د (بياڼ) په شکل تلفظ کوي. ښځينه جنس ته ئې (بياڼه) وايي.

خوشحال وايي:

**بيهاڼ** د اسپو کله يکسان دي
ځيني تهوان دي ځيني اسان دي
ځيني د بار دي د زيست روزگار دي
ځيني د توري د برگستوان دي
(رباعيات – ۱۵۶مخ)

**مولوي بريالی وايي:**

در قيب په خوشگويي به غلط نه سم
پای بسته وي په اول مزله **بيهاڼ**
(اهاړ – ٩٠مخ)

***

**پدل:**

محجوبيت، حيا، سام.

په لس زره پښتو لغتونه کي ئې د دې لغت معنا "اثر" کښلي دئ. لغات افغاني نه دئ ثبت کړی. پښتو سيند په "تاثير" سره معنا کړی دئ او ظفراللغات ئې "شعور، بې عقل، اثر" معناوي بللي دي. پدل ماتېدل ئې په "بې اثر کول" سره معنا کړی دئ. د خوشحال خان خټک کليات (نوی چاپ) په وييپانگه کي ئې "گټه، فايده، مثبت اغېز، ښېگڼه" معناوی ورته کښلي دي.

دا لغت د کندهار په لهجه کي ډېر عام دئ خو کومي معناوي چي قاموسو کښلي دي، د کندهار د لهجې له استعمال سره ډېري نژدې نه دي. په کندهاری لهجه کي (له يو چا سره پدل ماتېدل) دا معنا لري چي له هغه سره اوس په خلاصه خوله، بې له کوم مانع او خنډه او بې له کومي ملاحظې راشه درشه، خبري اتري کېدلای سي. د مثال په توگه يو ځوک د يو چا مجلس ته د شرم او حيا يا کوم بل دليل له اسيته ورتللای نه سي. يو بل ځوک ئې له ځانه سره دغه مجلس ته بيايي. تر دې وروسته نو د ده پدل مات سو او نور نو په پوره زړه نوموړي مجلس ته ورتللای سي.

خوشحال خان خټک دا لغت کار کړی دئ خو په معنا کي ئې زه شکمن يم. نه هغه معنا يکښې موندلای سي چي قاموسو راوړي

ده او نه هغه مطلب ځني اخيستلای سم چي زما پخپله لهجه کي ځني اخيستل کېږي. ګويا دا لغت په "حل طلب" لغاتو کي راځي.

خوشحال خان وايي:

نه ئې قدر شته نه **پدل**
ډير ترمور اوتر جراد دي*
(۳۵۹-مخ)

دا بيت په ټولو چاپو "مرغلري"، "ارمغان" او "د خوشحال خان خټک کليات" کي په همدې شکل ثبت دئ او د هغي غزلي د پای له خوا دوهم بيت دئ چي د پښتانه په ذم کي ويلې سوې ده او مطلع ئې ده:

پښتانه که آدم زاد دي
په خويونو کښي هناد دي

په نوموړي بيت کي "ترمور" کلمه ما ته "ترهور، ترور" ايسي او چاپي متونو دا کلمه سمه ثبت کړې نه ده. ځکه اول خو د (ترمور) لغت هيڅ معنا نه لري او هيڅ قاموس هم دا لغت نه دئ راوړی. دوهم دا چي په نيم بيتي کي "ترمور، اوتر، جراد" پرله پسې راغلي دي او مترادف لغتونه بايد وي. (ترهور، ترور) وارخطا ته وايي، (اوتر) هم وارخطا، سراسيمه ته ويل کېږي او (جراد) د بې پروا، زړه ور ته وايي. دا معناوي له بيت سره لګېږي هم.

په ارمغان خوشحال (۳۹ مخ) کي راغلي دي:

د ناقصي پوهي **پدل** په کار نه دي
د دانا فکر خطر لري خطير

***

---

*ترمېږيانو او ترمچانو ډير دي (ع. پالوال).

د کندهار په لهجه کي (پل) په همدې معنا ژوندی او په محاوره کي عام لغت دئ. څوک چي په کوم غټ سفر ځي، دوستانو ته وايي "حق راپل لرئ" يعني که مو حق راباندي پاته وي، راويې بخښئ. دغه راز غوښتني ته "حق پليت" وايي.

(پل) لغت په همدې معنا په نورو لهجو کي نسته. ارواښاد سرمحقق دوست شينواري په "زړه پانګه " کي د دې لغت په باب ليکلي دي: "... (پل – پله = معاف، بخښلی) صفت دی، چی د پښتو په لويديځه (د کندهار) لهجه کی بيخی ژوندی او مروجه لغت دی. خو په ختيځه لهجه کی له استعماله وتلی دی. دغه کلمه نه يوازی دا چی زموږ په لرغونی ادب کی زياته استعماليدله بلکی په آريايی ژبو کی يی ژوره ريښه لرله ..." (زړه پانګه – سريزه – ۴ مخ. نقل قول کټ مټ او د چاپي متن په املاء رانقل سوی دئ. م. ه).

خوشحال خان ويلي دي:

ما خپل خون ورته **پل** کړی
که زما د مرگ عذاب شته[۱]

(۲۹۴– مخ)

میرزا خان انصاري وايي:

چي په قصد و هسي جنګ وته هوس کړی
اول خپله خونريزي کړه **پله پله**

(۱۷۹– مخ)

***

---

[۱] د ظفراللغات په مثالو کي دا بيت داسي ثبت دئ: "که زما د خون عذاب شته"

**په متې:**

بالآخره، منتها.

د کندهار په لهجه کې دا لغت د (ایله، ایله بېله) په معنا کارېږي. پوهاند زیار صاحب ئې (په) ځني غورځولی دئ او پر ځای ئې یوازې "متې" کاروي.

حمید وایي:

په دا رنګ ئې تر بېګاه په هزار **متې**
وساتلې په ګرېوان کې سرې سکروټې
(۴۸۹-مخ)

مولوي بریالی وایي:

نا امید او سه له ښکلو "بریالیه"
دوی په **متې** عملي کا اول خپل ناز
(اهار-۴۸مخ)

***

**پوري ووري:**

"په یوه خوا ننوتل او تر بلې خواوتل" ته ویل کېږي. په قاموسو کې په "آنطرف واینطرف" ترجمه سوی دئ. په لوېدیځه لهجه کې عام مروج لغت دئ. په کلاسیک ادب کې ئې د استعمال موارد سته.

میرزا خان وایي:

ښایسته بانه ئې غشی د خدنګ دی
تر دا سختو زړو به ووزي **پوري ووري**
(دیوان-۲۲۵مخ)

شمس الدین کاکړ ویلي دي:

د هجران په سيخ سوری شوم **پوري ووري**
لکه نی له هره بنده جدا وايم
(۹۱ – مخ)

***

**پووندہ*:**

**په لويديځه لهجه کي کوچيانو ته (پووندہ) هم ويل کېږي. ميرزا خان انصاري ويلي دي:**

ځيني ځيني **پووندہ** شي
څوک حاصل له تجارت کا
(ديوان – ۲۰ مخ، د کابل چاپ – ۱۳۵۴ش)

**بل ځای:**

**پووندہ** و مزارع ته وکړه سانه[۲]
د زړه ذکر دي پټ شو پوله پانه
(۱۹۳– مخ)

***

**پيخر:**

**د (پيخر) لغت د کندهار په لهجه کي د (ډېر زيات) په معنا کارېږي. قاموسو په همدې معنا ثبت کړی دئ او خوشحال خان ئې هم په همدې معنا راوړی دئ:**

---

* هغه څوک چي غيلي او بودګان پيايي، کوچيان راز – راز دي. خو هغوی چي د غيلو رمې لري، پووندہ کوچيان وي (ع. پالوال).

[۲] په زړه پانګه کي ئې "سانه" ته (خبره) معنا کښلې ده. په کندهاری لهجه کي "سيانه" هغه چا ته ويل کېږي چي (هوښيار، په خبره پوه) وي. سيانه: هغه څوک چي

په **پیڅر** به د هر چا کره پراته وو[۳]
که دا د رمي د پلي غوندي ارزان وای
(۳۳۸ - مخ)

خوشحال خان په سواتنامه کي وايي:

که په سوات کې په **پیڅر** دي وربږي ماشي
د منګورو، بروړو، ويل په چا شي؟
(۷ - مخ)

***

**پیزی:**

مړاوی، پژمرده (پارسي).
د کندهار په لهجه کي په همدې معنا ژوندی کلمه ده.

قاموسو هم راوړې ده.

حمید مومند وايي:

له ساده مخه د صبر سبق چا زده
څو **پیزی** د خط په زېر و په زور نه شي
(کلیات - ۲۹۱ مخ)

***

**تسپې:**

دا لغت د عربي (تسبیح) مفغن شکل دئ. د کندهار په لهجه
کي ئې وینګ عام دئ. خوشحال خان ئې هم (تسپې) لیکي (د

---

[۳] په حاشیه کی ئې کښلي دي چي د (پیڅر) لغت د چاپي دېوان؟ ترتیبوونکو سم نه دئ لوستلئ او (پڅسر) ئې لیکلی او په ارمغان کي ئې (بې خرته) څني جوړ کړی دئ.

پښتو، پښتور چاپ ۴۴۲مخ د پوهاند زیار صاحب د خوشال ادبي پښتو، ۲۴مخ په حواله).

د عبدالحمید مومند په کلیات او نورو ټولو چاپو کي ئې هم (تسپې) کښلی دئ:

ساده د لــوته کمند پردي د نیولـو
چې په لاس توري **تسپې** کا د آبنوس
(کلیات – ۹۳مخ)

***

**تښتن:**

د کندهار په لهجه کي تر ما وړاندي نسل دا کلمه (څښتن) نه تلفظ کوله بلکي (تښتن) ئې ویله. په کلاسیک ادب کي هم (تښتن) تر (څښتن) زیات کار سوی دئ.

میرزا خان وایي:

چي مـوجود تـه ثریا دی لـه ثرا
د **تښتن** لـه حکمـه نـه دی مـاورا
(۵۷– مخ)

د میرزا په دیوان کي زه یو ځای پر (څښتن) پېښ سوی یم (۶۱ –مخ) او دا راته د کاتب یا مرتب مداخله ایسي.

***

**تلتک:**

تلتک ته د پښتو په زیاترو لهجو کي (برستن، برستنه) وایي. په کندهار کي (تلتک) ډېر رواج لري. جمع ئې (تلتکان) وایي. خوشحال خان هم تلتک لغت راوړی دئ:

کشکې ځوان د پښتانه په ننګ کښې مړ وای
نه چې ګور لره روان شو له **تلتکه**
(ارمغان – ۶۱مخ)

په متن کې د (وای) پر ځای (وی) او د (تلتک) پر ځای (تولتک) راغلی دئ. چې دغه ئې تحریفات دي.

***

**تندی:**

تندی د فارسي (پیشاني) په معنا د خوشحال خان په عصر کې معمول لغت وو. دا لغت په لوېدیځه لهجه اوس هم ژوندی او د ورځنی محاورې لغت دئ. په نورو لهجو کې د تندي پر ځای تندہ او (وچولی) زیات کارېږي.

عبدالقادر خان وایي:

په دا لارې تله په سترګو په **تندي** شي
ځکه پاتو د ناقص ځني قدم شو
(۱۴۳– مخ)

بل ځای وایي:

څو دي زړه هو مره ستم کوه دلبره!
په **تندي** مي قبول کړی ستا ستم دی
(۲۶۸– مخ)

حمید مومند هم (تندی) لغت راوړی دئ:

وا به نه ړوم نور مخ له ساده رویو
که د خط اره مې کښېږدي په **تندي** ییا
(کلیات – ۱۰مخ)

کامګار خټک وایي:

په فراق ئې د خوږ (و) لبو میگونو
دو دسته **تندي** وهم لکه مگس
(دیوان – ۴۵مخ)

**بل ځای ئې ویلي دي:**

چا چې زړه مه په دنیا د دین ونه کړه
په ارمان به دو دسته **تندي** وهي
(۱۵۶– مخ)

**د کامگار ختک په دېوان کي یو ځای (وچولی) هم کارسوی دئ:**

(چې مې) ښکلې د ښو په غشي ولي
نه کړم **وچولی** خپل تریو لکه هدف

(۵۳ – مخ)

**د دغه بیت د اړوندي غزلي هر نیم بیتی یوولس هجاوي (څپې) دئ خو که څوک ځیر سي د هماغي اړوندي غزلي په ټولو بیتو کي صرف د همدې یوه بیت وزن ډېر وران سوی دئ او له دې ورانۍ څخه بیا څوک حکم کولای سي چې د دې ورانۍ گوته د کوم بل چا لاسوهني ته نیول کېدای سي. زه حدس وهم چې د دې بیت اصلي بڼه به داسي وه:**

"نه به کړم **تندي** خپل تریو لکه هدف"

**خوشحال خان هم د "وچولي" ویی راوړی دئ:**

په کاغذو کښې خوانائې ولولي
چه کښلي نه وي هغه څوک څه لولي
هسې مردان شته په دا دنیا کښې
تختې د **وچولې** تختې د زړه لولي
(رباعیات – ۱۶۲مخ)

دلته هم د څلوريځي وروستی بند د خوشحال د شعر رواني نه لري؟

***

**توري:**

فلزي پيسې، پول سياه (پارسي)، ايکی.

توري د فارسي (پول سياه) او د انګرېزي (change) په معنا هم د کندهار په لهجه او هم په کلاسيکو ادبياتو کي سته. د نورو لهجو ويونکي ئې دومره نه کاروي.

دا نا کسان دی و ګړی کسی
د غره و اور ته لا سو نه نيسی
در چه په سپينو په سرو موندل شی
دی ئې په **تورو** پيسو رانيسي
(رباعيات – ۲۹۵ مخ)

د کندهار په لهجه کي "رانيول" د "پېرودلو" په معنا کارېږي. خوشحال خان ئې هم په همدې معنا راوړي. د پښتو د نورو لهجو ويونکي ئې نه کاروي. همدا سبب دئ، چي زياتره ئې "راونيول" ليکي خو هغه بيا د "ګرفتن" معنا لري.

خوشحال خان په دستارنامه ۳۷مخ کي وايي: "ځنې خوش نويس يوه قطعه، دوه درې بيته اوکښي، په مهربها کيږي – ځنې په روپۍ، ځنې په تورې ...". په سواتنامه کي هم دغه لغت راغلی دئ:

کله کله پکې هسې ارزاني شي
چې په دوو **تورو** د شلو مهماني شي
(۴– مخ)

***

**تول- (په لنډ واو).**

دا لغت د کندهار په لهجه کي د (کښت، مځکي، جایداد) په معنا راځي. "غنم مو له خپله توله دي". یعني غنم له خپلي مځکي څخه راته راځي. په بازار کي ئې نه رانیسو. دا لغت قاموسو اخیستی دئ (ظفراللغات، زېړه پانګه) خو په نورو لهجو کي دا لغت عام رواج نه لري. د خوشحال خان د دېوان زیاتره ناسخان او ترتیبوونکي د دغه لغت په ثبت کي ستونزي لري او (ټول) ئې لیکي او سبب به ئې غالباً له دغه لغت سره نابلدتیا وي. خوشحال خان وایي:

اشنایي لکه ښه **تول** چې ورته اش کړې
جدایي لکه ړلی ورانی د تول کا
(۴- مخ)

یا:

چې هم **تول** ځي، هم دلیه، دا طوفان دی که ړلیه
چې بې ویري، مونده نه شي، هی توبه له هسې کښته
(۱۹۷- مخ)

حمید مومند وایي:

د حیا په **تول** مې واوري ړلیه
په خندا چې راته سپین کاندي دندان شوخ
(کلیات -- ۶۰مخ)

په متن کي "ټول" لیکل سوی دئ چي تېروتنه ده. په وییپانګه کي د "تول" لغت نه راوړل بیا دا معنا لري چي د متن ترتیبوونکي دغه لغت نه پېژانده.

***

**تیک:**

**دا کلمه په لوېدیځه لهجه کي د (قد راست) په معنا زیات رواج لري. علامه رشاد رحمه‌الله علیه ویلي دي:**

**تیک تیک** ځه اخله اوږده اوږده ګامونه
په پسې د سرو، مایه او ښو کتار
(د افغانستان بدي ورځي – ۴۲مخ)

**د کندهار شاعر شمس الدین کاکړ وايي:**

و شهرت وته دا هسي رنګ تیاردئ
په لړتاو شي لکه ډول و ما ته **تیک**
(۷۵– مخ)

**د خوشحال خان په کلام کي یو ځای (تیکه) کلمه راغلې ده او له (تاجکه، ورکه، کنډکه، ختکه، ...) سره قافیه کړې ده. د کلیاتو په کابل چاپ (۲۳۰ – مخ)، دانش چاپ (۱۴۹– مخ) کي په همدې شکل ثبت ده خو د کندهار چاپ (تِک) لیکي ده (۱۸۷– مخ). ما ته د (قد راست) او (سیده) په معنا ښکاري چي همدا (تیک) باید وي.**

چي ئې توره پکار نه وي حبطه ده
که ئې روغه وي د سپینو زرو **تیکه***
(۲۳۰ – مخ)

**د عبدالحمید مومند په دېوان (۱۷۴ – مخ) په در او مرجان (۵۴مخ) او د عبدالحمید دیوان په (۷۷مخ) کي د "تک" په شکل ثبت دئ:**

---

*تېکۍ: د توري پوښ، د چاړې پوښ، د خنجر، سېلاوې پوښ (ع. پالوال).

پــه لــړ تــا و مــه شــه نادانــه
لکــه ډول و شــر تــه **تــک**

(دیوان – ۱۷۴مخ، د ۱۳۶۳ش چاپ)

د حمید مومند په کلیات (۱۳۰مخ) کې ئې په متن کې "تک" ثبت کړی دئ خو په وییپانګه کې د "تیک" په شکل کښلی دئ.

په مختلفو چاپو کې د دغه راز ثبت څخه ثوک ویلای سي چې د (تیک) لغت په همدې راز وینګ د دغو چاپو د ترتیبوونکو په لهجو کې عام استعمال نه درلود.

د عبدالحمید مومند کلیات په وییپانګه کې ئې "تیک" ته لیکلي دي:

"سینه وتی ولاړ، هغه ولاړ چې سینه او خېټه ئې راوتې وي"

***

**جوړه** (فشار پر وروستي څپه دئ):

په کندهار کې ناوي ته تر واده دمخه د خسر له کوره او تر واده وروسته د پلار له کوره چې کالي، پسول او نور سوغاتونه لیږل کیږي، دې ته "جوړه" وایي. په دغه معنا ئې خوشحال خان په دستارنامه کې راوړي:

"... لکه د پښتانه دود د کشیده قمیص، د پایڅو د سرکاه د مقنع، دا دودونه دي نه پریږدي – هر کله چه په دا جوړه وواده شي – نورې مهینې جوړې دي زرګونه ورسره وي" (۱۳۲– مخ).

***

**چڼه:**

د سپي د شړلو له پاره، چغه.

میرزا خان وایي:

غریب او سرگردانه و لا لهانده ته "دربدره، خاک په سره" ویل کېږي. خو په ورځنیو خبرواترو کي د"در" پر ځای"دروازه" ډېره مروجه ده.

اشرف خان وايي:

سحرگاه که اهل دل رب ته نیاز
هغه دم وي **دروازه** د قبول باز
(۳۳۴- مخ)

***

دِرونه:

د انسان باطن ته (دِرونه) وايي. خو په کندهار کي د "زړه یخولو" پر ځنګ "دِرونه یخول" اصطلاح هم رواج لري. خوشحال خان هم "دِرونه" راوړې ده:

د دوزخ لمبې به کار په عاشق نه کا
چي ئې تاو د **دِرونې** دی په دا دال
(۸ – مخ)

***

دفتین، دفتی، دپتی:

د کندهار صحافان دفتی هغه کلکه کاغذي تخته چي د کتابو وقایې ځني جوړوي، دفتی بولي. خوشحال خان ئې د "دفتین" په شکل لیکي. "مشق په تخته بدفتین بویه – که په نری قلم ډیر کښې، خوش نویس به نه شې" (دستارنامه – ۳۹مخ).

"بدفتین" زما په ګومان د متن ناسمه لوستنه ده. سم شکل ئې "مشق په تخته په دفتین (پر دفتی باندي) بویه".

***

**دلي او هورې:**

رحمان باباوايي:

نه **دلي** شوې نه **هورې** شوې
ترمينځ د وب شوې مذبذبه
(۱۲۴- مخ)

حميد وايي:

که **دلي** سوال وځواب کړې مرد هاله ئې
چې غلط نه شې **هورې** په سوال جواب
(۳۳- مخ)

د کندهار په لهجه کي د دې دوو مکاني اشارو پر ځنګ (دورې) هم سته چي په نورو لهجوکی د (هيسته) لغت يو څه ورنږدې دئ.

بريالى صاحب وايي:

د تنصيح عسکر **دورې** ساته ناصحه
زما د عشق په بغاوت دئ د زړه سراى اړ
(اهاړ- ۴۸مخ)

***

**دنده:**

د کندهار په لهجه کي "دنده" د دوهمي څپې په فشار تلفظ کېږي او د ختيځي لهجې تلفظ ئې د لومړۍ څپې په فشار دئ. خوشحال خان يې له کندهاري تلفظ سره سم کاروي، فشار ئې پړدوهمه څپه اچوي او له (بنده، ګنده) سره په يوه قافيه کي راوړي.

چه نوکري کا څوک د بر گنده کا
سړی آزاد وی خپل ځان بنده کا
تر آزادۍ نه بهتر هیڅ نشته
چه څوک په کور کښې خپله **دنده** کا

(رباعیات – ۴مخ)

***

**دَوَخته:**

**ډېر پخوا*، وختي لا، اول لا، مدتها پيش (پارسي):**

**دا لغت په کندهارۍ لهجه کي سته او په ورځنۍ محاوره کي ژوندی او د استعمال وړ لغت دئ. له ظفر اللغات پرته مي په نورو قاموسو کي نه دئ په سترگه سوی. په نورو لهجو کي ئې د کارولو په باب دقيق معلومات نه لرم. خوشحال خان ويلي دي:**

د لور عفت غواړه د زویه توره
هغه چه دا لري بلائې دوره
چه دا ئې نه وی مرگ ئې ميلمه شه
مور دې **دوخته** شی په دواړو بوره

(رباعیات – ۷۸مخ)

**په فراقنامه کي راغلي دي:**

په هر دم دي په مانې مرم
خو په مرگ دي مړ **دوخته**

(۲۴– مخ)

**ميرزا خان انصاري دا کلمه ډېره کار کړې ده.**

لکه لمر **دوخته** لوی په نظر کښېوزي
چې شعله ئې په کمال شي صورت کم کا
(۲۸- مخ)

یا:

د عنقا طلب ئې نه وکړ **دوخته**
د نوسک په نغوته پاته شو پر تهور
(۷۱- مخ)

***

**دیدې (سترګې):**

**اشرف خان هجري وایي:**

نه به وصل د رانجا و شي له هیره
نه به هیر **دیدې** روشني په رانجا کا
(۴ - مخ)

**په متن کې "روشن" دئ چې د یوې هجا کمبود په شعر کې سکته راوړې ده. په اصل کې ښایي تر نون لاندې زېر یا له کاتبه پاته سوی وي، یا به د متن چاپوونکې دقت نه وي ور ته کړی.**

***

**دي وه:**

**"دي وه، دي وي" قسمیه کلمات دي، یعني ذ قسم (سوګند) پر وخت کارېږي.**

**اشرف خان هجري ویلي دي:**

د احمد رسول په حق **دي وه** یا ربه
خطا مه کړه د خټک بنده ایمان
(۱۱۰- مخ)

"ستا دي وي که به ئې راشخه پتوې" اصطلاح په کندهار کي عامه ده.

***

ړکی، ړۀکۍ:

(فشار پر لومړی ځپه دۍ) وچ ښاخ، وچ لرګی:

رحمان باباویلي دي:

سره لمبه ګوره چې څه کا په وچ **ړکي**
مخ د يار په رحمان هسي چاري کاندي
(۱۳۵- مخ)

یا:

کم بختان د يار په وصل کښي مهجور دي
د وچ **ړکي** بهره نه وي په بهار کښې
(۱۶۲- مخ)

هجري ويلي دي:

چنبې زیړ ګلونه وزوول له تنه
هر يو **ړکې** نمونه د چندڼ هار که
(۱۳۱- مخ)

په متن کي "ړکی ئې" دۍ چي د نیم بيتي يوه ځپه ئې زیاته کړې ده او شعر ئې عیبي کړی دۍ. که ئې د هجري پخپله ژبه "ړکې = ړکی ئې" لوستلی وای دا عیب ئې له منځه تی.

په کندهاري لهجه کي ئې "ړوکی، ړوک" بولي.

"هوا داسي سړه وه چي مرغه پر ړوک يخی کېدی" (زما د سپين سري مور له خولې).

***

**رو:**

**لار، وار، مجازاً د ازدحام، گڼه گوڼه په معنا هم کارېږي. په لوېديځه لهجه کي ژوندی لغت دئ. هجري وايي:**

په دو کان د ښکلو **رو** د صورت نشته
واړه زړه سودا کوي صاحب مداردی
(۵۰۴ - مخ)

**خوشحال خان د (لار) په معنا کار کړی دئ:**

زه خوشحال ختک د هغه چا بنده یم
چي ئې **رو** د زړه د خولې سره یکسان وي
(د خوشحال ختک کلیات - ۳۵۷مخ)

***

**رودبار:**

**رودبار په لوېديځه لهجه د (رودخانې، د رود غاړه) په معنا کارېږي.**

**رحمان باباويلي دي:**

هغه ملک چي په کښې سيند و **رودبار** نه دي
دهقانان به ئې همه خانه خراب وي
(۱۰۷- مخ)

**کامگار ختک وايي:**

بې له تا په ما د گلو باغ زندان دی
ماهی کله بې **رودباره** مومي حظ
(دېوان - ۴۹مخ)

***

**روک:**

**په کندهاری لهجه کي "روک" د (صريح، څرگند، په ډاگه،**

تورت) په معنا کارېږي. هجري وايي:

دانايان دي **روک** دما په شعر گوري
نيک و بد به ئې روشن کاندي محک يم
(۴۰۸–مخ)

په چاپي متن د لومړي نيم بيتي ثبت سم نه دئ او داسي ثبت سوی دئ:

"دانايان دي **روک** د شعر په ما گوري"
ماگوتي پکښې ووهلې او سم مي کړ.

***

**رېز:**

د مرغانو (چغار او خواندن) ته وايي. په لوېديځه لهجه کي ژوندی لغت دئ.

عبدالحميد مومند وايي:

په چمن کې د بلبلو اورم **رېز**
رنگ د گلو دی له رنگه د رنگرېز
(۸۶ – مخ)

مولوي بريالی وايي:

سهار **رېز** بلبلان يو په بل وصيت کا
چي د "گلو په گلزار نسته باور"
(اهار – ۴۰مخ)

***

**رېگ:**

د پښتو په ځينو لهجو کي د (رېگ) له پاره (شگه) لغت عام دئ. خو په کندهاري لهجه کي شگه او رېگ دوه جلاجلا نومونه

دي. ریګ هغه ماده ده، چې په انګرېزي ژبه کې ئې (sand) بولي او شګه هغو میدو ډبرو ته وایي چې په انګرېزي ورته (graval) ویل کېږي. د "ریګ" په نامه د کندهار په جنوب کې یوه منطقه هم سته چې د پاکستان سره پوله جوړوي او هغه ریګستان دئ.

رحمان بابا وایي:

عمارت په سر د **ریګ** روان کاندي
هر چه کاندي عمارت په دا دنیا
(۷ – مخ)

عبدالقادر خان وایي:

که عقل پوهه که تیغ که دیګ وو
په پښتانه کې د خوشحال بېګ وو
زرئې همت وته په شمار د سلو وو
زرئې سخا ته د صحرا **ریګ** وو
(۳۷۶– مخ)

بل ځای ئې "شګي" داسي راوړي دي:

جمعیت چې له دنیا په دنیا غواړي
هغه غړي په معنی د **شګو** پړی
(۲۴۹– مخ)

حمید وایي:

لکه سیل چې رژوي کمر د **شګو**
نړوي مې هسې مینه وار په وار
(کلیات – ۶۹مخ)

دلته "شګي" د "ریګ" معنا نه ورکوي.

بل ځای:

کوم ساعت به دې سرلاندې څنې لګي
د **شګلن** کمر په سرباندې ولاړه
(۲۲۰- مخ)

**بل ځای "رېګ" هم راوړي:**

په خوله پته يې شيده لکه پوخ دېګ
رژېده ئې د ژوندون له مخه **رېګ**
(۳۹۱- مخ)

**شمس الدين کاکړ (شګي) د (رېګ) په معنا نه راوړي:**

که به څوک شمېري غمونه د هجران لړ
د هغو په نظر **شګې** د بيابان لړ
(۶۱- مخ)

***

**زنګاري:**

**يو راز رنګ ته ويل کېږي. د کندهار تلفظ ئې "زنګالي" دئ.**

**رحمان بابا وايي:**

د ګلګونو ميو ناوې راته ناسته
**زنګاري** کميس اغوستی د مينا دی
(۲۲۱- مخ)

***

**سازل:**

**د "خلقت" په معنا په لوېديځه لهجه کي سته. په دغه لهجه کي (رازل) هم په دغه معنا کارېږي.**

**ميرزا خان وايي:**

مخلوقـــات د آدم زاد د پـــاره وشـــول
او ســړي د ي معرفـت ســرع **ســازلي**
(۴۵-مخ)

***

**سایه:**

**خوشحال خان خټک د (سیوري) تر څنګ د (سایه) کلمه هم زیاته راوړي او دا هغه کلمه ده چي د عامیانه معیاري ژبي لارویان ئې د کندهار د لهجې د ګډوډۍ په ثبوت کي راوړي.**

**خوشحال خان وايي:**

څوک چې مخ په نمر روان شي خو دی ګوري
چـې **ســایه** ورپــسې دروسـې پــه قـــفا
(۱۰-مخ)

**یا:**

بادشـاهي ئې په نصیب او په قسمت وي
چې **سایه** د چـا په سر کاندي همای دی
(۳۱۲-مخ)

**یا:**

کـــه دې پـــــه غـــولی ولاړه ونـــه ده
هـو مره پـرې ویـاره څـو لویـه پلنـه ده
یـا بـه میـوه لـــري یـا بـه **ســایه** لـري
جـوړه پـــه ونـــه بانــدې ســتاینه ده
(رباعیات - ۱۰۱مخ)

**په دستارنامه ۱۹۵مخ کي راغلي دي: "د بدر په ورځ رسول علیه السلام تر سایه لاندي ناست وه- اصحاب په نمر وو".**

**هجري وايي:**

که **سایه** د مرغـه وشي ستا پـه ونـه
څـه عجب کـه ئـې لـه وزنـه خمیـده شـي
(۵۰۹ – مخ)

**عبدالقادر خان وایي:**

تـر **سایه** ئـې د جنت خو ښـیه مـومم[۱]
د خپـل یـار قامـت و مـا تـه شـو طـوبـا
(۳۰ – مخ)

**رحمان بابا ئې یو ځای د شعري اړتیا له مخي (سایا) هم راوړي:**

نه یم خوښ د سرو گلـونو پـه **سایا** زه
خوښ یم ستا د مخ پـه اور بانـدي جلیـازه
(۱۵۳– مخ)

**حمید وایي:**

لـه مستیه ښـاخ ښـوره د سـحر بـاده
چې **سـایه** ئـې پـر زلفـانو وښـوریږي
(کلیات – ۲۸۵مخ)

**میرزا خان ویلي دي:**

مخ پـه مخ ئې واړه رنگ لـه رنگـه ویوست
پـه **سـایه** ئې دولت رانیو لـه هـمایه
(۱۰۴– مخ)

**بل ځای وایي:**

منقلـب د نـاز پـه سـیوري فراغـت کـا
بـې **سـایې** برهـنه خبـر دی لـه تمـوزه
(۱۴۶– مخ)

---

[۱] په اصل کې (مومې) دئ.

میرزا حنان بارکزي ویلي دي:

سیابختی لکه **سایه** راپسې ګرځي
چې داستا په تورو زلفو شم اشنا
(۳۶ – مخ)

د خوشحال په دیوان کي (سیورۍ) د (سیوره) په شکل هم ستهٔ.

چې ئې **سیوره** په ما وه لکه بادشاه وم
ستا د تورو زلفو سیوره همایي ده
(۲۸۲– مخ)

عبدالقادر خان ختک هم سیوره راوړې ده:

مستغني دي د جهان له بادشاهي کړم
د همای تر سیورې بهه ده ستا **سیوره**
(۱۹۱– مخ)

د میرزاخان په کلام کي هم (سیوره) څو ځایه راغلې ده.

که ته مخ په نمر و نیسې
در پسې به درومي **سیوره**
(۱۳۴– مخ)

خوشحال خان هم یو ځای (سیورۍ) د جنس له مخي مونث کار کړی دئ.

اشنا ته وایه نه شي، نااشنا به څه خبریږي
دا راز چې له مانه دی او رېدلی خپلې **سیورې**
(خوشحال – ۴۳۶مخ)

دا هم باید وویل سي چي د کندهار په لهجه کي (سیورۍ) کلمه هم سته. مولوي بریالی وایي:

ما د تشهیر منصب بخښلی دئ او مه زاهد ته
د گمنامی د پردې **سیوری** مې وجدان کئ پوخ
(اهار – ۲۸ مخ)

***

**سپم:**

**(د لومړي توري په سکون) د ستني سوری.**
**د رحمان بابا په دیوان کي ئې "سم" لیکي:**

بې د ستا له زیبا مخه و بل مخ ته
منتظر د یوې ستني تر **سم** نه یم
(۷۵– مخ)

***

**سپومی:**

**مړسپمی. خوشحال ویلي دي:**

دا دواړه بدان نه گوري له کسته
په ښه مخ باندې ومه شه دانې، **سپومي**
(۴۰۷– مخ)

**د کندهار په لهجه کي مړسپمی د مخ د پوست یو راز ناروغي ده، چي پر مخ باندي سپیرې، یاسرې ټپلي (داغونه) پیدا کېږي. زما په خیال مړسپمی به هغي جلدي ناروغۍ ته وایي چي کابلیان ئې (رشک) بولي.**

***

**ستاره:**

**(د لومړي توري په سکون):**

**دا لغت د "دبدبې، درنښت، هیبت" په معنا په کندهار کي**

کارېږي. ښځمني ئې ډېر وايي. کوچنیانو ته چي دوعا کوي، داسي ورته وايي:

"خدای دي د ستارې و د بارې که". د "ستارې" کلمه له (ستر) سره ژبنۍ رابطه لري*.

خوشحال خان په سواتنامه کي وايي:

پوهېدم دما **ستاره** وه پرې غالبه
لههیبته ئې دا ووته له ژبه
(۵۵ – مخ)

***

**سر گومه:**

بې هوښه، هغه ناروغ چي سر ئې د راپورته کېدلو نه وي.

د کندهار ښځمني وايي: د زوی مي تکولې تبه ده، له پرون راهیسي سر گومه پروت دئ.

رحمان بابا وايي:

خدای راپېښه نری لار کړه نالیدلې
لکه ورانه ماشوره چي وي **سر گومه**
(۸۰ – مخ)

***

**سَسَی:**

یو راز دښتي بوټي دي. په رېگستان کي زيات پیداکېږي. د کندهار خلک ئې د اور د پېلوځي په توگه کاروي.

---

* ښايي له ستوري سره اړه ولري. څوک چي لېږيمه وي، وايي ستوري ئې لوېدلئ دئ. لېږيمه: عاجز، اسکېرلئ (ع. پالوال).

**خوشحال خان ويلي دي:**

ستا د مخ په سينه سوزم، لولپه شوم
د آتش لمبه هيڅ نه پرېږدي د سسي
(۳۵۶ - مخ)

***

**سمندر:**

د (سمندر) كلمه چي اوس د (بحر) په معنا زياته رواج لري، په كلاسيک ادب كي په دغه معنا نه موندله كېږي او د كندهار په لهجه كي هم په دغه معنا نسته. په دغه معنائې د رواج زمانه، چي د اردو ژبي تر اغېزې لاندي پښتو ته رانغوتلې ده، تر شلمى پېړۍ ها خوا ته نه اوږدېږي. هغو مستشرقينو چي په پښتو ژبه كي څېړني كړي دي، دا كلمه د (درياب، بحر) په معنا نه وه اورېدلې. پروفيسور دورن او هنري والټر بيليو پخپلو ترتيب سوو قاموسو كي د (بحر، درياب) په معنا نه ده ثبت كړې، بلكي په هغه معنائې ثبت كړې ده چي په كلاسيک ادب كي راغلې ده. په كلاسيک ادب كي (سمندر) د هغه حيوان په معنا راغلى دئ، چي وايي په اور كي ژوند كوي.

وزير محمدگل خان مومند په پښتو سيند (د ۱۳۱۶ ش چاپ) كي د سمندر كلمه گرسره لري نه. ده د "اوقيانوس" له پاره پښتو معادله كلمه "سيند" بللې ده (۵۱ - مخ). د دې معنا دا ده چي د وزير صاحب مرحوم په ژوند كي دغه كلمه (سمندر) د (بحر) له پاره نه كارېدله. كه سمندر كلمه د ده په ژوند كي د پښتو كومي لهجې د (بحر) له پاره كارولای، هرومرو ئې ثبتوله.

په (لس زره پښتو لغتونه) قاموس كي چي د ارواښاد وزير

صاحب تر قاموس (پښتو سیند) څلور کاله وروسته د کابل د پښتو ټولنې د معاون محمداعظم ایازي او د لغت د څانګې د نورو غړو په همکاري ترتیب سوی دئ، هم د (سمندر) کلمه نسته.
د اروابناد سید راحت الله زاخیلي په (لغات افغاني) نومي کوچنوټي قاموس کي چي (سمندر) کلمه هم د "دریای اعظم - آګ کاکیړا" په معناوو ثبت سوې ده، زه ئې د اردو ژبي اغیزه بولم.
(زما سره چي د لغات افغاني کومه نسخه پرته ده،د چاپ نېټه نه لري).
(سمندر) په پارسي ادب کي هم د نوموړي حیوان په معنا کار سوی دئ.
شیخ سعدي علیه الرحمه وایي:

سمندر نه ای گرد آتش مگرد
که مردانگی باید آنگه نبرد

په لغتنامه دهخدا کې کښلي دي چي سمندر له یوناني لغت "سالامندرا" څخه مشتق سوی دئ او په فرانسوي ژبه کي هم له همدغي ریښې څخه په همدغه معنا (salamandre) سته.
سالامندرا د"اور پربښتې (فرشتې) ته ویل کېدله.
د خوشحال خان خټک په کلیاتو (د دانش ټولنی چاپ) کي د غزلیاتو برخه د (سمندر) لغت له اسیته وکتله، فقط یو ځای ې وموندله او هورې هم د (بحر) په معنا کار سوې نه وه:

ژواک ژوندون مې همګي واړه په غم شو
غم په مثل لکه اور زه **سمندر**

(۴۱- مخ)

دخوشحال درباعیاتو په برخه کي مي سمندر هيڅ په سترګه نه سو.

حميد مومند وايي:

هسي يم په درد و غم کي د دلبر خوښ
لکه اوسي په سره اور کي **سمندر** خوښ

(۹۶- مخ)

ميرزا حنان بارکزی ئې د درياب په معنا نه، بلکي په دا دوهمه معنا کاروي:

حذر څو وکړي "حنان" د عشق له اوره
همېشه وي دا ور خلاص پر **سمندر** در

(۵۹- مخ)

يا بل ځای وايي:

د يار عشق راکښي پيدا کړ هسي سوز
**سمندر** راته حيران دئ شب و روز

(۶۸- مخ)

شمس الدين کاکړ ئې هم د درياب په معنا نه راوړي:

علاوه د يار غمونه پسي غواړم
نه مړېږم **سمندر** غوندي په اور

(۵۱مخ)

***

سنګړه:

غټه ګردی ډبره. په لوېديځه لهجه کي زياته مروجه کلمه ده.

حميد وايي:

اوس حميد کوي ناري د يار له غمه
چي ئې ولي دا رقيب په لو **سنګړه**

ښاغلي پالوال صاحب د ډبرو نور انواع داسي راوړي دي:
کاڼی، اره، پرښه، تیږه، گوسه، لپاڼکی، گیندجوړی، غرگی، بغری، شاخه، بغرگی یا لوړه ډبره، وارځ، مرغ، شگه، ریگ، سال. (د تفصیل له پاره وگورئ: معیاري پښتو - ۲۵۹، ۲٦۰ مخونه). زه به پر دغو نومو باندي (سنگچل، سخر، او کرکنډه) هم ور زیاته کړم.

***

## سَوی اولَوی:

عبدالقادر خان ویلي دي:

یو مجنون **سوی اولوی** د عشق نه و
میني ډېر کړل تر مجنونه سوي لوي
(۳۱۴ - مخ)

یا بل ځای وایي:

د عالم له ویري آه و کښلی نه شم
په کوگل کي مي دننه وشول **لوي**
(۳۱۹- مخ)

په حاشیه کي ئې (لوی) د دود په (گرد) معنا کړی دئ؟ (لوی) د (الپیل) سره بې رابطې نه دئ. الپیل پر اور باندي د پسه د پوست سوځلو (پخولو) ته وایي. د کندهار قصابان د ژمي په موسم کي پسه الپیي. د (الپیل) له پاره د (الوی) انډول د پښتو په نورو لهجو کي سته. پسه الپیل کیږي او غنم په وږي کښي او همداسي جواري الوځ کیږي.

په (لولپه = مکوټ) کي د سر (لو) هم له (لوی) سره یوه ریښه لري.

***

**سیب:**

**خوشحال خان ختک د (سیب) او (منه) کلمې دواړه راوړي خو د (منې) استعمال بېخي لږ دئ. د پښتو په لوېدیځه لهجه کي د (سیب) کلمې استعمال عام دئ. خوشحال وایي:**

پوزه ئې غونچه وه د زنبق، **سیب** سپینه زنه ئې
مشک د مخ خالـــونه په مخ کښلي مـه پارا
(۷ – مخ)

**یا:**

لکـه و، د زنـخ **سـیب** پـه هغـه شـان دی
نـه چـې اوس ئـې تبـر و بېـر دی تلـذذ
(۴۸ – مخ)

**یا:**

لکـه **سـیب** زمـا پـه خولـه کـې
غــه شــیرین ذقـــن وای تـــل
(۱۰۹ – مخ)

**یا:**

چـې یـا **سـیب** یـا بهـي کـیږي
بــصل مـه شـه، حنظـل مـه شـه
(۲۹۸ – مخ)

**په یوه ځای کي چي ما د خوشحال خان په کلام کي (منه) ولیدله هغه بیا د تر تیبوونکي له خوا ناسمه لوستل سوې وه. بیت دا دئ:**

هیڅ پرې نه پوهیږم، دا دي زنه که **منه** ده
خـال دې دی د زنې کـه دانـه د مـانې
(۴۸۲ – مخ)

**په حاشیه کې ورته کښلي دي چي په دوهمه او څلورمه خطي نسخه کي دانیم بیتی داسي دئ:**

هیڅ پرې نه پوهېږم چې دا وږمکه (ده) که مه ده

**یا:**

نن په نظر راغله یوه تری
زنه ئې **سیب** وه شونډې نری
بله به نه وی هسې دلبره
نه په خشکی نه په تری
(رباعیات – ۲۸۵مخ)

**په سواتنامه کي راغلي دي:**

دُر، شبه، کانی، یاقوت ورته یو شان دي
**سیب**، شلغم، انار، بهي ورته یکسان دي
(۲۵ – مخ)

**رحمان وایي:**

چي یوسف غوندي هزار پکښې پراته دي
بندیوان د هغه **سیب** ذقن په چاه یم
(۷۳ – مخ)

**یا بل ځای وایي:**

که ئې زنه د ځوانۍ په وقت کښې **سیب** وي
هغه سیب ئې په پیرۍ کښې بیا حنظل شي
(۲۰۹ – مخ)

**هجري وایي:**

دواړه شونډې ئې نبات اننګې **سیب** دي
د عشاقو زړونه ټول په دغه خوان کا

**عبدالقادر خان ویلي دي:**

دا ئې شونډې دي که لعل یا یاقوت دی که مرجان
**سېب** دی دا که ناشپاتي که د بخت ستوری که ذقن
(۱۳۲ – مخ)

**حمید مومند په یوه مخ کي د پنځو بیتو په فاصله هم (منه) راوړې ده او هم (سېب).**

څه تعریف ئې کړم د زنې له د دُرخشه
د عیسی له لاس **منه** وه حیات بخشه
(۴۸۷– مخ)*

**پنځه بیته وروسته وایي:**

په سینه ئې جلوه گر دوه غوره **سېب** وو
مجرب دارو دوا د هر آسیب وو

**میرزا حنان بارکزي ویلي دي:**

دا ئې زنه ده که **سېب** ده، د "حنان" د زړه آسیب ده
چي په تش آرزو ئې کېږي د رنځورو زړو دوا
(۳۹– مخ)

**په کلاسیک ادب کي د (سیب) کلمې له دونه (دومره) پراخ استعمال سره سره به بیا هم د عامیانه معیار لارویان حق ولري، چي لوېدیځه لهجه د دغي کلمې د استعمال له اسیته وکړي.**

***

**سیرۍ:**

**وقف سوې مځکه.**

**په سواتنامه کي راغلي دي:**

---

* که منه په قافیه یا بل داسي ځای کښي راغلې وي چي له سېب سره ئې د الیشېدني

چې ملا د "میان نور" په حکم د رومي
هم هغه د سوات په ملک کې **سیرۍ** مومي
(۳۶ – مخ)

***

**سیږمې، سیبږمې:**
د پزې سورې، چې په پارسي ئې (سوراخ بیني) بولي.
خوشحال خان په دستارنامه کې لیکي:
"په ژمي د باز د دومې د زکام د نزلې هم بدکشنده زحمت دی.
د مهوړۍ مرغونه ئې دي واخلې - اوبه سیږمې ئې ونیوی شي ... دي ئې وڅښوي ..." (۶۴ – مخ).
په دستارنامه کې ئې د "سیبږمې" شکل هم ستر "... په شپه په ورځ که د میږه تریوه سیبږمې ویني ځي تر بله زوې ځي ..." (۱۲۱ – مخ).

***

**سیخ پرې، سرخ پرې، سرخ سرې:**
دا درې نومونه د هیلیو د جلا جلا جنسونو دي. (وګ: ښکار و کندهار – د لیکونکي اثر – ۱۰۰، ۱۰۲، ۱۱۴ مخونه).
په فراقنامه کې لولو:

مرغاوۍ په هر هر لوروي
سونا هم پکې لاډیروي
په آخر راشي **سرخ پرې**
هم سیخ پرې هم **سرخ سرې**
(۴۷ – مخ)

دلته د مرغابۍ کلمه باید د پای د تانیثي (ۍ) له اسیته

فارسي کلمه ونه ګڼل سي. دغه راز پسوندي (ی) په فارسي ژبه کې نسي ويل کېدلای. د پښتو تأنيثيت پر تطبيق سوئ دئ.

***

سېر:

په کندهار کي (سېر) د (من) په اجزاوو کي دئ. يو من څلوېښت سيره دئ. د سېر وزن له (خورد) سره برابر دئ. په نورو سيمو کي (سېر) تر منه په تاله ډېر دئ. د کندهار يو من لس پاوه دئ په داسي حال کي چي د نورو سيمو سېر شپاړس پاوه کېږي.

د حميد مومند په کلام کي (سېر) تر منه کم ښوول سوی دئ:

په غرور د توان تېری په ناتوان مه کړه
چې د منه توله سپکېږي په **سېر*** ګوره
(کليات – ۲۱۷مخ)

***

سيله:

طرفداري، پلوي.
په کندهاري لهجه کي په همدې معنا ډېره کارېږي.
خوشحال په سواتنامه (۵۸ – مخ) کي دا لغت داسي راوړی دئ:

که په دا طور او رپورې په درست سوات شي
مګر هاله دما **سيله** مکافات شي

***

شاړه:

د کندهار په لهجه کي هواره پيټه لويه ډبره چي غله پر ګير ګيره کېږي. (شائحه، شيائحه) د قبر ډبري ته وايي "هغه وخت

به پوه سي چي سر دي د لحدشاخه ووهي".

میرزاخان وايي:

د قضا **شاړه** بـه ستا ځنگونـه مات کـا
کـه تـه هـر ځـو پورتـه پـه هـوا ځـې
(۲۴۲- مخ)

***

**شامت:**

شامت په لوېديځه لهجه کي په همدې شکل د (نحس) په معنا مروجه کلمه ده. د پښتو نوري لهجې ئې د (شوميت) په بڼه اوس کاروي. پوهاند زيار صاحب د خوشحال په کلام کي د "شوميت" شکل د کرلاڼې لهجې ځانگړ تيا بولي.

خوشحال خان د شامت کلمه ځو ځايه راوړې ده:

چـې د کـښليو ننـداره راځخـه لاړه
خبـر نـه يـم کـوم گنـاه و کـوم **شـامت**
(۳۷- مخ)

يا:

پـه **شـامت** ئـې دمـا تـري غرنړيـږي
لا پـــــه دا د اپريــــديو بصرنـــــشته
(۳۰۵- مخ)

يا:

دا کل **شوميت** د نفس دی چې په تا شي هسې شندې
هـــزار رنگـــه غـــمونه فـــسادونه دم پـــه دم
(۱۵۲- مخ)

يا:

چه کار ئې بیایې فلک په کښته
چاری به کاندی بې مصلحته
کجیر که ځیر دی چه بې تدبیر دی
په خزه بند شی له دې **شامته**

(رباعیات –۵۹ مخ)

رحمان بابايې هم (شوميت) ليکي:

دا همه واړه **شوميت** دی د شومانو
گنه ته د چا په زړ مه نه ئې ستړی

(۲۴۹ – مخ)

عبدالقادر خان خټک وايي:

په **شامت** د ديو سرپيو باران پر پرده
شکر دا چې اورنه ووري له اورو

(۱۳۶– مخ)

زما په فکر د دې کلمو ريښه په "شوم" کي سته؟
په ارمغان خوشحال کي د "شامت" شکل خوندي دئ. (وگ: ۲، ۱۶، ۲۰، ۴۲ مخونه او نور)

***

**شِبَه:**

د لومړي توري په زبر او د دوهم په زور (فتحه).

يو ډول مصنوعي (نقلي) مرئ ته ويل کيږي. په کندهار کي ئې ښځمني پيژني (زما د څلور اتيا کلني مور په تصديق). ما د لومړي توري په پيښ او د دوهم توري په زور اوريدلی دئ. په لغات افغاني، پښتو سيند، د خوشال خان خټک کليات په وييپانگه کي دا لغت نسته. ظفر اللغات اخيستی دئ خو هورې ئې د تلفظ په باب څه نه

دي ليکلي خو د خوشحال ختک مرغلري (۳۹ - مخ د کندهار چاپ) په حاشيه کي ئې ورته کښلي دي: "په چاپي نسخه کي لمړی توری زېر او دوهم توری زور لري، په قلمي نسخه کي محشي (مشکنی) ورته کښلی دی. چي مصنوعي مری ځني مطلب دی".

خوشحال خان وايي:

له ياقوته دي هاله سيالي **شِبَه** کا
که د اور په تاو کښېږ دانه شي بې آبه
(مرغلري - ۳۹مخ)

په سواتنامه کي لولو:

په تميز کي سراسر واړه مبهوت دي
چي ږلی، ورته گوهر، **شبه** ياقوت دي
(۲۱ - مخ)

بل ځای:

دُر، **شِبَه**، کانی، ياقوت ورته يو شان دي
سيب، شلغم، انار، بهي ورته يکسان دي
(۲۵- مخ)

***

**شک*:**

په يوه شي خبر (آگاه).

دا لغت په همدې معنا په کندهاری لهجه کي ژوندی دئ.

"ولا که په شک لا يم" يعني قسم ده، که په خبر يم. دا لغت قاموسو

---

* د کندهار په پښتو کښې "جگ درېدل" مانا لري. محضي شک شکه ده. په دغه مانا له مشکوک، شک کول څخه دئ. خود ښکه په شک لا دي: نه پرې پوهېږي. شک شکه د بيجلو يو بازي هم ده (ع. پالوال).

**په دغه معنانه دئ اخيستی. خوشحال ويلي دي:**

په ناحق ئې په زندان کړم يو څو کاله
خدای خبر دی که په خپل گناه زه **شک** يم

(ارمغان – ۲۴مخ)

**اشرف خان هجري وايي:**

هسې زشت عمل مي اوليد له ناکسو
چه له گرگه ليده نشي نه پرې **شک** يم

(۹۶ – مخ)

**بل ځای وايي:**

د ښايست پوله دي چرته ده حيران يم
نه مې حد يقين موندلی نه پرې **شک** يم[1]

(۴۰۷– مخ)

***

**شکرپاره:**

**د زردالو په شان مېوه ده. معمولاً وچه کارېږي. د کندهار د وچې مېوې په صادراتوکي مهم قلم دئ. په قاموسوکي مي په سترگه سوی نه دئ.**

**خوشحال وايي:**

دواړه شونډي دې خوږې **شکرپارې** دي
د گلابو گل دې دواړه رخسارې دي

(۳۸۰ – مخ)

***

---

[1] دا نيم بيتی په متن کي "نه ئې حد يقين موندلی نه پرې شک يم" دئ. ما سم کړ.

**شمله:**

د پښتو په زیاترو لهجو کي شمله د بګړۍ هغه برخه ده چي د ولونو دپاسه د جوغې په شان جګه ولاړه وي. په کندهارۍ لهجه کي شمله د بګړۍ هغه برخه ده، چي د غوړ پر برابري مخ یا شاته کښته راځړېږي*. خوشحال خان سره له دې چي په اشعارو کي ئې یو ځای شمله د بګړۍ د جوغې په معنا کاروي (دستارنامه ــ ۱۲مخ) خو په مجموع کي ئې د شملې تعبیر له کندهارۍ لهجې سره سم دئ. دی په دستارنامه (۵ ــ مخ) کي د حضرت رسول ﷺ د شملې د اندازې په باب لیکي: "په ځینو روایتونو د رسالت پناه درې دستاره یاد شوي دي ــ یو اته لس ګزی، شمله ئې نیم ګز شرعی ــ دویم دوازده ګزی، شمله ئې یو ګز هغه د جنګ ده ــ دریم شپاړس ګزی، هغه به ئې په اختر په جمعه په سر تاړه".

لوستونکي متوجه دي که خوشحال خان د بګړۍ له شملې څخه مراد د هغې جوغه وای، نو نیم ګز یا ګز شرعي جوغه جګه درېدلای نه سي او نه په پښتنو کي چا په دغه اوږدوالي جوغه لیدلې ده.

تر دې چي ورتېر سو، خوشحال خان پخپل یوه شعر کي شمله له زلفو سره تشبیه کړې ده. زلفي ځړېدلي وي جګي نه درېږي. بیت دا دئ:



...و ځل بیا سرتوره مسته راښکاره شه!

...سو دې په سپین مخ **شملې** وي

(۳۶۴ــ مخ)

---

* سیکان و لنګوټې ته بګړۍ وایي. ځکه نو په کلاسیکو ادبیاتو کښي دستار راوړۍ سوئ دئ (ع. پالوال).

اشرف خان هجري هم شملې او زلفي سره تشبیه کړي دي.
دی وایي:

توري زلفي دي دائم **شملې شملې** دي
له بښه مخه دي هـرگز مه شه جدا نور
(۳۳۱ – مخ)

***

**شموخه:**

په وریجو کي هغه ناپاکه سوې دانه چي پوست پر پاته وي.
کندهاریان ئې "شماخه" بولي.
میرزا خان ویلي دي:

لـه عـادته عـبادت لــره نـه درومې
پـه پاخه اتـام کـښې اوم لکـه **شموخه**[1]
(۱۲۴– مخ)

د کابل چاپ دیوان په لغتنامه کي دا لغت نسته. خو د پېښور چاپ په "فرهنگ" کې دې لغت ته کښلي دي: "یو قسم واښه چه خوند ئې تریو دی". په پارسي ئې (شماق) بولي (د لس زره پښتو لغتونه په حواله).

***

**شنه:**

وحشي واښه.
په دستارنامه کي راغلي دي: "د آس سرکشي ... سواره د ناپوهی شي– یا ئې بې روخه په تازیانه ووهي، یا ملونه ناموافقه ورواچوي، خوله ئې خوږ کا – یا جای بند وي، شنه ئې خوړلي

[1] په پېښور چاپ دېوان کي دوهم نیم بیتی "په پاخه طعام کښې اوم لکه شموخه" دئ.

وي..."(۵۰ - مخ).

په کندهار کي قصابان د پسرلي پر وخت وايي: "پسونه پر شنو دي، غوښه ئې بېخونده سوې ده".

په پورته نقل قول کي "جاى بند" اصطلاح هم په کندهار کي عامه ده. د دغه ځاى خلک وايي "تر جاى بنده آس، گښته خر ښه دئ".

***

**شوپرک:**

شوپرک ته د پښتو په نورو لهجو کي "کڅلکی، اسمان کڅلکی" لغتونه سته. عبدالقادر خان ئې د "شوپرک" په نامه راپېژني. د کندهار پښتانه ئې هم "شوپرک" بولي.

عدل چي د ده لکه افتاب په جهان وخوت
پټ په سوراخونو کي ظالم، **شوپرک** وار شو
(۴۷۸ – مخ)

میرزا خان انصاري ويلي دي:

**شوپرک** چي په حجاب گرزي له ورځي
د ديدن طاقت ئې نه لري نظر
(۶۶ – مخ)

بل ځاى وايي:

عارفان د دواړو کونو ننداره کا
**شوپرک** په تياره گرزي بې نظره
(۱۳۱ – مخ)

په زياتره دېوانو کي د پارسي ميرزايي کتابت تر اغېزې لاندي د (شوپرک) نوم (شب پرک) ليکل سوى دئ. د ميرزاخنان

بارکزي په کلام کي لولو:

رقیب نه شي ستا د مخ سیل کولای

**شب پرک** شي له پرتوه د آفتاب ورک

(۷۸ – مخ)

مولوي بریالی وایي:

سره څه دي د ګلرخ او د شیخانو؟

پرده پوه کله وهي **شوپرکان** موج

(اهار – ۲۳مخ)

په اصل کي د میرزایي کتابت تر اغېزې لاندي (شب پرکان) لیکل سوي دي.

***

شوکور:

هغه څوک چي د شپې له خوا په ستر ګو هیڅ نه ویني.

عبدالقادر خان وایي:

چې رقیب ئې مخ ته ګوري زه هم ګورم

دا کتل به مې **شوکور** کاندي پوهېږم

(۱۰۴ – مخ)

مولوي بریالی وایي:

چي د لمر تره وبېدو ئې کړ **شوکوره**

و شوم بم ته بس دغه آسیب د صبح

(اهار – ۲۴مخ)

په چاپي متن کي (شبکوره).

***

شولان، شولانونه:

سالن هغه کتغ ته ویل کیږي چي د وریجو (پلو،چلو) پر څنګ ئې پخوي. غورمه، کوفته، بانجڼ، پاتی، دوپیازه، سبزي، دولمه او نور په سالنو کي شمېرل کیږي.

خوشحال وایي:

څوک چه ډوډۍ د دهقانۍ خوري
خواږه د حورو د مهمانۍ خوري
چه ئې په ظلم خوري واړه ئې زهر شه
که **شولانونه** د سلطانۍ خوري

(رباعیات)

خوشحال خان په دستارنامه کي لیکلي دي:

"د مردانو په شولان کښې د هر چا برخه شته،..."(۱۴۳- مخ).

شولان ما ته د (سالن) په معنا سهي ښکاري او شین راته د هغه ژبني جریان اغېزه ایسي چي د (سو، سي، سم،...) سینان ئې په شینانو سره اړولي دي.

د خوشحال کلیات (نوی چاپ) کی ئې شولان ته کښلي دي: "کمند، کمندونه" چي سهي نه ده.

د خوشحال فرهنګ (د یارمحمد مغموم خټک) شولانونه لغت او د خوشحال په کلام کي ئې مثال راوړی دئ (۱۳۳- مخ)، خو معنایې ځني پاته سوې ده.

د خوشال خان خټک کلیات په وییپانګه (۱۲۳۲- مخ) کي چي شولانونه په "کمند، کمندونه" معنا سوي دي، د حیرانتیا وړ خبره ده!

سالن لغت د ارواښاد عبدالهادي ریشاپه یوه شعر کي داسي دئ:

که پلو وي که **سالن** وي که میوه وي
که شیدې که پراټې که کبک کولچه وي
خدای و هست که څه لنده وي او که وچه
نوش جان دارو درمان دي د میلمه وي

***

**شلومبې:**

**په کندهار کي ئې هم شلومبې بولي. په نورو لهجو کي ورته (تروې، شرومبې، شناوی) وایي.**

**خوشحال وایي:**

که دغوا د بزو **شلومبې** خورې زیان ئې نشته
اشتها د سړي زیاته کا په خور

(ارمغان – ۵۷مخ)

**په ارمغان (۲۵، ۳۹ مخو کي) د "شلمبو" په شکل هم لیکل سوي دي. په رباعیاتو کي "شنوبې" ثبت دئ.**

کلپه روپیه بنایسته روغه وی
خوچه سوراخ شی نوربی فروغه وی
هیڅوک د خپلو **شنوبو** بد نه وایی
صفت د هر چا له خپله دوغه وي*

(رباعیات – ۲۱۹مخ)

**پوهاند زیار صاحب لیکي چي خوشحال خان "شلومبې" کلمه هغه شان کاروي لکه "چې په لویدیزه پښتو کې هم همداسې دودلري". (وګ : د خوشال ادبي پښتو– ۳۶مخ)**

**رحمان باباېې هم "شلونبې" دوې هجایي کاروي:**

---

* "هرڅوک وایی چې زما د غرکې خوند نشه دئ" (ع. بالوال)

وارہ تشي **شلونبې** شارېې
خبر نـه شـوې لـه مطلبـه
(۱۲۵- مخ)

**په نورو لهجو کي (شلومبې) درې څپې تلفظ کېږي او شين ته زور (فتحه) ورکوي.**

***

**شوکَه:**

**شوکه هغه درد دئ چي دوامداره نه وي. کله چي راولاړ سي، کرار کرار پسې زياتېږي څو خپل اوج ته ورسېږي. بيا بيرته لږېږي څو وشلېږي. د لنگون درد ته شوکي وايي. د پيچ يا اسهال پر وخت د کولمو درد ته هم شولي وايي. د کندهار ښځمني ئې په ښراوو کي هم کاروي: "د کولمو شولي دي درولوېږي" په کندهار کي ډېره عامه ښرا ده.**

**خوشحال خان ئې د "خوارئ، مشقت، زحمت" په معنا کاروي. دی په دستارنامه کي د شعر په باب وايي:**

**"يو يو بيت ئې لکه فرزند زوول هسې شولې لري. خدای دي په دا رنځ څوک گرفتار نه کا".**

**حميد مومند هم دا کلمه راوړې ده:**

يـو لـه ځلـې د سـبق سـبقت انـديش
بـل لـه **شـوَلو** د رخـصت پـه خـاطر رېـش
(کليات – ۴۳۹مخ)

**د دغه کليات په وييپانگه (۷۸۸مخ) کې د (شوله) معنا راوړې ده خو تلفظ ئې (sola) ليکلی دئ .چي گويا د کلمې د سر شين (پېښ، ضمه) لري. دا تلفظ ناسم دئ او د دغه لغت اصلي**

وینگ د شین توري په سکون باندي (سره) سهي دئ.

"شوګه" په کندهارۍ لهجه کي د (ډېر تېره) په معنا هم کارېږي. د مثال په توګه "دا چاکو داسي تېره دئ لکه شوګه" یعني دونه تېره دئ، چي ورېښته په خریل کېدلای سي.

***

**صیادي:**

په کندهار کي "صیاد، سیات" هغه ښکاري ته ویل کېږي چي مرغان د خرڅلاو له پاره نیسي". (وګ: ښکار او کندهار – ۲۶ مخ)

خوشحال هم د "ښکاري" او "صیاد" توپیر کړی دئ. دی لیکي "د ماهی ښکار د صیادی ښکار چه د اهل حرفت د روزګارِ عالم ښکار دی، دا صیادی د قدیمه لا د آدم (ع) د وخته ده ..." (دستارنامه – ۵۵مخ).

د "اهل حرفت" څخه د خوشحال خان مراد دا دئ چي دا ښکار یو راز کسب و کار و پېشه ده. په کندهار کي هم صیادي خپل کاسبان لري.

د (ت) او (دال) ابدال نور مثالونه هم سته:

جلات – جلاد،

فساد – پسات،

آباد – ابات، ...

***

**غاو، غوغا:**

غالمغال، اعتراض، شکایت.

په دغو معناوو د کندهار په لهجه کي ژوندی لغت دئ. قاموسو اخیستی دئ او په نورو لهجو کي هم سته.

**خوشحال خان په دستارنامه کي کښلي دي:**

"ســـــــــرو دهورته دی روا
چــه نــه **غــاو** وي نــه **غوغــا**
ســـامعان ئـــي صـــاحب دل وي
نـــه وي نفـــس نـــه ئـــي هـــوا
(۱۶۱- مخ)

**اشرف خان هجري وايي:**

د حاسد پـه صعنه **غــاو** نه کــا رښتيني
پــه ســنگينه زمکــه شــور لــري ســيلاب
(۳۲- مخ)

**عبدالقادر خان ختک وايي:**

کـه هر څو ورباندي **غــاو** رقيب غماز کا
عاشــق کلــه غــوږ د ديــو پــه آواز کــا
(۱۸- مخ)

**پخوا به د ښار د معتبرو خلکو د کورو په دروازه کي يوه خونه وه چي "غاوچيان" به پکښې اوسېدل. غاوچي د "قابوچي" مفغن سوی شکل دئ او قابوچي تورکي کلمه ده، چي د (دروازه وان، دربان) معنی لري. په خوشحال فرهنگ (۱۵۴- مخ) کي چي "قابوچي" په "خودغرض، مطلب پرست" معناً سوی دئ، د تامل وړ خبره ده.**

***

**غاري غرڅه:**

**د کندهار ښکاريان ئې "غاري موږيی" بولي (وگ: ښکار او کندهار - ۳۳مخ).**

**خوشحال وايي:**

اې چه په روکښې گزار ته سازې
سترگې دې لکې غوړ په اوازې
غاری غرڅه دی دربانډې درغی
په تخرگ ئې وله که تیر اندازې

(رباعيات – ۲۴۲مخ)

**خوشحال خان يو ځاى ځان له "خواجه خضري غرڅه" سره تشبيه کوي:**

په مثال **خواجه خضری غرڅه** خوشالو
چې گوزار وربانډې وشو ناگهان

(د خوشحال ختک کليات – ۹۷ مخ)

***

**غولی:**

**غولی د کور (انگړ) ته وايي چي په فارسي ئې (حياط) بولي. دا لغت په کندهار کي مروجه ژوندۍ کلمه او فولکلور ته ئې هم لار موندلې ده. د کندهار کوچنيان د باران نه اوربدلو پر وخت کور په کور گرځي اوړه، خوړې يا ايکۍ ټولوي. دا لوبه (ارگوړي) بولي چي په اسلامي ثقافت کي ورته (استسقاء) وايي. د استسقاء له پاره خاصي دعاوي سته. ارگوړي د استسقاء پښتني دود دئ. د ارگوړو پر وخت کوچنيان دغه مسجع عبارتونه په گډه وايي:**

**"ارگوړي، برگوړي. خداى دي يو زوى درکي چي پر غولي درته ښوري، ډولاډنگه (لولاډنگه) څه غواړي، يوه کاسه اوړه غواړي، اسمان خړي اوبه غواړي، مځکه شنه واښه غواړي".**

**خوشحال خان ختک سره له دې چي د (انگړ) او (انگڼ)**

**کلمې هم راوړي خو د (غولي) لغت زيات کاروي:**

ودې نــــه زېــــږي فرزنـــد
د بابـــا پـــه **غـــولي**، ونــد
(۴۶– مخ)

**يا:**

هغه دم چې تور گيسو په خپل صورت باندې خواره کړې
خوشبويي د خاصه مښکو په درست **غولي** شي پريشانه
(۲۴۹– مخ)

**يا:**

پــه کـــــو ته بانـدې دا دواړه حبــطه دي
چې دې تش پـه **غولي** گرزي هم بلا دی
(۳۱۴– مخ)

**يا:**

کـه وينـې ژاړم گـــرېوان چـاک کـړم
پـــه **غـــولی** گـــرځم غوغا بلغـــاک کـــړم
پـــه دا بـــه تللـــی يــــاران راننــه شـــي
سـکه بايـده دا دی چـه ځـان بـې بـاک کـړم
(رباعيات – ۲۸ مخ)

**يا:**

کښېنه په **انگړ** کې مخامـــخ چې درتـه گـورم
تور لونگين، دواړه چندڼ هار په سينه تال کړه
(۲۸۸– مخ)

**خوشحال په دستارنامه کي کښلي دي:**

**"... په لوړ ځای درېدل – په بام ختل، په غولي کښې گرزېدل، دا دي هر گز نه وي ..." (۱۳۰– مخ).**

**رحمان بابا ویلي دي:**

د زړه **غولی** مې نیولی ستا غمونو
نور غمونه دي له زړه ویستلي ما
(۲۲- مخ)

**هجري وایي:**

اقبال نه ورځي هرګز د چا په **غولي**
څو همراه ورسره نه کاندي زوال
(۷۵- مخ)

**میرزا حنان بارکزی وایي:**

د ښادۍ رخ مې ونه لید پر دا **غولي**
چې ځغلم بېهوده لکه فرس
(۷۰- مخ)

***

**غېږ:**

**په لوېدیځه لهجه کې ئې هم "غېږ" وایي خو په ځینو نورو لهجو کې "غېږه" ده. خوشحال خان ئې هم هر وخت د "غېږ" په شکل راوړي. که ځیني استثناآت موجود وي هغه راته د خوشحال خپل انتخاب نه ښکاري. (د خوشال ادبي پښتو ۳۲ مخ) کې یادونه سته.**

**میرزا خان انصاري وایي:**

د عالم هنر به واړه پرې تمام کړم
که سرکښ خاطر په **غېږ** کې ونیسمه
(۱۸۴- مخ)

***

**کاګل، کاه ګل:**

**کاګل د کندهار په لهجه کې د (اخېړ) پر ځای کارېږي. مثلاً**

وايي: په مني مو د کور بامونه کاګل کړي دي.

میرزا خان انصاري وايي:

اوهاله به ئې د مراد تخم زرغون شي
چې د نيو په اوبو جمال **کاګل** کا
(۶۱-مخ)

***

**کالکوچن:**

دا لغت په ظفر اللغات کي په "دهوکه باز،..." معنا سوی دئ.
د خوشال خان ختک کليات په وييپانګه کي نه دئ اخيستل سوی او د مغموم په خوشحال فرهنګ کي مي هم په سترګه نه سو. په کندهار کي (کاړکچو، کړکچو) د غالمغال، شور، ړوړ (زوړ) په معنا مروج لغت دئ. عموماً د مرغانو، په تېره بيا میناوو د شخول له پاره کارېږي. ليري نه ده چي له کالکوچن څخه د خوشحال خان مراد (غالمغالي، شرير،...) وي. خوشحال خان په سواتنامه کي ويلي دي:

د "کاچو" نمسی نه خان دی، نه ملک دی
**کالکوچن**، دروغژن غشی د هلک دی
(۳۱-مخ)

***

**کاواک:**

کهال، تنبل، لټ:

په لوېديځه لهجه کي کاواک لغت سته او پر څنګ ئې د همدې مطلب له پاره (کاړي واړي) ويی هم کارېږي.

دخوشحال فرهنګ (د مغموم ختک) دغه لغت اخيستی دئ،

چي په مثال کي ئې د خوشحال خان دا بيت راوړی دئ چي ما په کابل چاپ او دانش چاپ کليات کي ونه موند:

سگ مگس خو سگ مگس دی نور به نه شي
که هر څو ئې آړوې **کاواک کاواک** دی

(د خوشحال فرهنگ، اول جلد، ۱۵۹ – مخ په حواله)*

رحمان بابا وايي:

ته ژغورې سرو مال په عاشقۍ کښې
عاشقي دا هسې چرې ده **کاواکه**

(۶۳ – مخ)

***

**کجک، کچک****:

هجري ويلي دي:

مشکي زلفو دي سونا کړه منفعله
په لکۍ ئې **کچک** پتاله دَ ده ماره

(۱۲۷ – مخ)

دا بيت يو څه مغشوش راته ايسي. د سونا هيلۍ، چي په کندهار کي ئې (شين سرې، زرغون سرې) بولي، په لکۍ کي دوه درې تاره ښکي سته چي سرونه ئې چنگ وي. د ښځمنو وریښتانو ته چي د غوړ پر برابري چنگ غچي (قيچي) سوی وي، کجک وايي. د سونا هيلۍ د لکۍ چنگ تارونه او کجک سره تشبيه

---

* دسپي مچ په آسانه نه وژل کېږي، مگر څوک ئې د دوو ډبرو تر منځ وکوټي. نو دغه کاواک (کم واک) کېدای نه سي (ع. پالوال).

** جکه، جکه، جکه – موزي ږيره وهي زما له کجکه زما له کجکه (ع. پالوال)

**کيدلای سي**:

**د کندهاري شاعرانو په کلام کي (کجک، کجکان) زيات راغلي دي. د يوې محلي غزلي سر داسي دئ:**

تور **کجکان**، ما ته جابې راوړه
که جابې نه وي ما ته غاړه بلوڅې راوړه

**مولوي بريالی وايي**:

تاو **کجک** دي په پرېشانه کاکل بند کړه
د سنبل غوټې په شپه دلگيري بنه دي
(اهار - ۱۳۴مخ)

***

**کچاری**:

**د تجارتي دعوو د فيصلې محکمه.**

**رحمان بابا وايي**:

د وصال دلالان کوم طرف ته غواړم
چي بندي شوم د هجران په **کچرۍ**
(۸۸ - مخ)

**مولوي بريالی وايي**:

سودا په نقدو کېږي د ژوندون په **کچارۍ** کي
وړيا په دې دوکان کي تبادل څه په کار نه دئ
(اهار - ۱۳۲مخ)

**د کچارۍ په نامه د کندهار د احمدشاهي ښار په کابل بازار کي يوه ودانۍ سته (وگ : احمدشاهي کندهار، د ليکونکي اثر - لومړی ټوک، ۲۳مخ). کچارۍ ته ئې په کندهار کي (پنچات) هم وايه. دا هندی کلمه ده او په کندهار کي ئې د پنچات دفتر ته**

(فیصله منازعات) هم وایه. بریالی صاحب وایي:

د غمزو **پنچاته** لــره څه خو مــدد کړه
"بریـالی" پــه دې سـودا کــي تـاواني ولاړ
(اهار – ۴۹مخ)

***

**کِچړي:**

کچړي یو راز خواړه دي چي له پنډو وریجو او ماشو (میو) څخه پخیږي او پر سر باندې کورت او سره کړي غوړي اچوي. دا خواړه په کندهار کي په ژمي خوړل کیږي.

خوشحال خان وایي:

تود **کچړي** د غوا غوړي په وخت د ژمي
تــر حلــوا تــر سـلوا زیـات لـري هنـر
(ارمغان – ۵۸مخ)

ځیني کسان د پکتیا د سیمي ژمني خواړه (ډنډکی) له کچړي سره یو شان بولي. خو کچړی او ډنډکی جلا جلا خواړه دي.

***

**کِردې:**

اعمال، چاري.

خوشحال خان په فراقنامه کي ویلي دي:

چې د بـل بنـې **کـردې** وینـي
ځـان او بــه کانــدي خبیــث
(۱۸– مخ)

د اول نیم بیتي "بنې" په چاپي متن کي "شی" دئ. که دا

چاپي غلطي نه وي، نو ښايي د ختکو لهجه به د مرتب په پام کي وه*.

عبدالقادر خان وايي:

مرد ئې مه گڼه چې لافي بې **کړدې** کا
مرد کړده بې لافو کا، ښځه لافي ده
(۱۷۹- مخ)

په ځينو متونو کي د "کړدې" په شکل هم ثبت سوی دئ.

هجري وايي:

په خوله واړه عمل کا د اولياوو
له **کړدو** ئې لاس په غوږو د کافر دی
(۱۸۷- مخ)

حميد مومند وايي:

**ناکردې** د محبت و سړي ور کا
په يوه لاس کي پياله په بل همسا
(کليات - ۱۳مخ)

ميرزاخان انصاري وايي:

عام و خاص کا د مسکين په نامه فخر
چي ويل **کِرده** ئې دواړه ده حنيفه
(۱۶۷- مخ)




***

کرکنده:

غټه گردۍ، ډبره چي انسان ئې د پورته کولو قدرت نه لري.

---

* زه گومان کوم چي د ختکو په لهجه کښي دي /ښ/ په /ش/ سره وايه کېدئ. خو، د کوټي کاسيان ئې د غسي وايي (ع. پالوال).

په لوېديځه لهجه کي مروج لغت دئ.

حميد وايي:

عشق مې هسې بې اختياره دماغ کوږ کړ
لکه ورغړي **کږ کنډه** په سر محوره

(کليات – ۲۲۳ مخ)

***

**کړه وړه:**

**شکل و قواره، قيافه، خد و خال.**

**عبدالقادر خان وايي:**

که لب دي لعل کړم لعل خو شيرين نه دی
که غاښ دي دُر کړم، دُر هسې سپين نه دی
که مخ دي نمر کړم د نمر **کړه وړه** نشته
که سنبل کړم زلفې (خو دا) مشکين نه دی

(۳۹۲ – مخ)

د دې رباعۍ وروستی بند په چاپي متن کي همداسي ناسم راغلی دئ. په کندهار چاپ (۱۸۴ مخ) کي داسي دئ:

"که دي سنبل کړم سنبل مشکين نه دی"

***

**کست:**

کست دوې معناوي لري. يوه ئې د (قصد = عمد) پښتو سوی شکل دئ او بله د (رخه) معنا ده، چي په عربي ورته (غبطه) وايي.

دا لغت په دواړو معناوو په لوېديځه لهجه کي سته. د (کست) کلمې له پاره په نورو لهجو کي د (رَخه) کلمات رواج لري. په کندهار کي (کست) عام استعمال لري. خوشحال ئې هم د

(رخه) په معنا راوړي:

**په لومړۍ معنا:**

ما په وړيو سترگو ديرياران خوړلي
په ځير ځير دې مخ ته نه گورم له **كسته**
(۱۹۶- مخ)

**په دوهمه معنا:**

د اسمان له عاشقانو سره **كست** دی
هر زمان ئې په هجران سره غمناک کا
(۹- مخ)

**يا: عبدالقادر خان ختک ويلي دي:**

وايم مه خانده بل چا سره زه سوځم
ته زما له **كسته** لا زيا ته خندا کړې
(۳۳۰- مخ)

**د اشرف خان هجري په ديوان کي د دې لغت دوه رازه ليکنه لولو. دی "قست" هم ليکي لکه په دې لاندي مثالو کي، او "قصد" هم (۲۸۷مخ):**

چنار تهولې پنجې پرانتې له شوقه
د بلبل په صوت ئې لاس وهل له **قسته**
(۴۴۳- مخ)

**يا:**

تل قدم د گل په سر کېدي له **قسته**
کوږ ئې نه کا يو ورق د گوشو پلونه
(۴۴۶- مخ)

**دغه قاف د هغه کاف بدلون دئ چي خوشحال خان په**

سواتنامه کي (۵۱ - مخ د کابل چاپ) کي سر ځني تکولی دئ.

***

**کشمش:**

په نورو لهجو کي (ممیز، مویز) دئ. نور وځکي داسي بولي.

رحمان بابا وایي:

له خوبانو نه به څوک څه وفا غواړي
سروي کله د **کشمش** میوه نیولې
(۱۷۷- مخ)

عبدالقادر خان وایي:

د **کشمشو** په لذت به څه پوهېږي
چې ئې خوله وي عادت شوې له املوکه
(۲۱۴ - مخ)

حمید د انګورو پر ځنګ "کوَر" هم راوړي دي:

هر قدم ئې چول زړونه د دلبرو
په مثال لکه دانې د پخو **کورو**
(کلیات - ۳۶۷مخ)

یا:

په هنر د پاکو بي چې آغاز ګیت کړ
سنګین زړه لکه دانه د **کوَرو** چیت کړ
(۳۸۳- مخ)

***

**ککوړي:**

ککوړي یو راز ډوډۍ دي چي د کاک په شان بې له تبې، دانې، تناره څخه پخېږي.

که ښندلي دي په خدای وي يو **کيکوړی**
نمايان ئې په جهان کښې لکه نمر کړې
(۱۵۱– مخ)

په کندهار کې ښځمني يوه بدل وشمه وراشه لري او د هغه چا په باب ئې کاروي چې تر پزي پوري ئې مړی خوړلې وي خو دی لا د لوړي څخه شکايت کوي. وراشه دا ده:

دوې کاسې سرسر، يو د غوايي سر، درې د اور ککوړي، آ! زما نهاري لوري!

حميد وايي:

ټول دې مه شه په زرگونو زر و سيم
چې ته يو **کيکوړی** خورې پکې يا نيم
(کليات – ۱۵۴مخ)

***

**کمبله*:**

هجري وايي:

هر سړی چې په اسرار د کار خبر شي
تر اطلسو خوښوي **کنبله** شاړه!
(۴۵۰– مخ)

***

**کوتر:**

پوهاند زيار صاحب د خوشحال کليات د پېښور چاپ په حواله ليکي: "(کوتر) ئې زياتره بې ښځينه پايلې ښځينه او کله هم نرينه کارولی دی: اوښتو لره پخته کوتر بايده دی" (د خوشال

---

*گلم. کمبله په کندهار کښې عموميت لري (۶.۰ با ال).

ادبي پښتو –۵۱ مخ).

د کندهار په لهجه کي "کوتر" د نر له پاره او"کوتره" د ښځي له پاره عام رواج لري. د کوتري نر تر ښځي ښې بازۍ کوي. په پورتني نیم بیتي"اوښتولره پخته کوتربایده دی" خوشحال همدې ټکی ته اشاره کوي. باید وویل سي چي په کندهار کي د کوترو په نومو کي ټول صفتونه مذکر دي (وګ : ښکاروکندهار – ۱۱۱مخ).

هجري وايي:

د تن پوست دي ښایسته له اصله نه دی
په چیني جامه هوس لکه **کوتر** کړې
(۲۱۸– مخ)

حمید وايي:

هسې رنګ به په نڅا تالا **کوتر** شو
چې به فکر د پري ورته اوتر شو
(کلیات – ۳۸۴مخ)

اشرف خان هجري ئې د (کونتره) په شکل هم راوړي:

هغه ښهر چه محسود د پېښوروه
نن **کونترې** پکښې جاله د بیدیا کا
(۲۵۸– مخ)

***

کورنګ:

د آس بچی.

د کندهار په لهجه کي دوې ځېې ویل کېږي د هجري په دیوان کي یوه ځیه کار سوی دئ.

په هر لور دي د هوس زين کړی **کرنگ** دی
د لغت ميدان دي نشته عمر تنگ دی
(۲۲۰- مخ)

**حميد وايي:**
راغی ځار شو نر **کورنگه** د شاهد
رضا جوی په هزار رنگه د شاهد
(کليات - ۴۵۹مخ)

**شمس الدين کاکړ وايي:**
تېز رفتار د "شمس الدين" **کورنگ** د ژبي
خو آخر به شي په دا ميدان کښي لنگ
(۷۸- مخ)

***

**کوغالی:**

**رحمان بابا ويلي دي:**
که نصيب مي شي **کوغالی** ستا د سپيو
وبه نه کړم نور نظر په جام د جم کښې
(۱۶۲- مخ)

**په کندهاری لهجه کي د غريبې محقر کور ته "کونډغالی" وايي.**

***

**کوکو:**

**(په اوږده واو) د کوچنيانو په ژبه (ښه، اعلی، ښايسته).**

**ميرزا خان ويلي دي:**

د دانا د وړاندي لهو و لعب څه دي
د هلک تر فهمه سره لمبه **کوکو** ده

***

**کولک:**

کولک دوې معناوې لري:

د خوني کولک: د خوني په چت کي سوری چي د روښنا د داخلېدلو او د دود د وتلو کار ځني اخيستل کېږي:

هجري وايي:

ترکولک چاپيره مه ګرزه عابده
ګڼه خون به دي په غاړه شي ټوبک (توپک) يم
(۹۴ – مخ)

بل د سترګو کولک چي د سترګو کاسې ته ويل کېږي.

خوشحال خان ليکي: "د سترګو رغول څو پردې لري – وازدې تر چاپيره په کولکونو کښې تور سپين پاسه کولکونه کلک د هډونو د سترګو د محافظت دپاره ..." (دستارنامه – ۲۱مخ).

***

**کويلی:**

کوينی، تاديګی.

د وريجو يا اوګرې هغه برخه چي د ديګ په بېخ پوري نښتې وي. د کندهار په لهجه کي ئې (کويَنَی) بولي.

عبدالقادر خان ويلي دي:

زويه په کور کې وچ ټوک به ژويي
زوی ئې له لوږي **کويلي** کويي
رښتيا متل دی هوښيار ويلی
دنيا خوږه ده تر ځان تر زويي
(۴۰۷– مخ)

د لام او نون ابدال په نورو پښتو کلماتو کي هم سته. يو ځو
مثاله ئې دا دي:
لمر – نمر.
لمونځ – نمونځ.
لمانځل – نمانځل.
نولس – نونس.
لمځی –نيمځی.
لماړي –نماړي.
لمسی –نمسی.
***

کيسر:
په کندهاری لهجه کي (کيسر) د خرو يو راز ناروغي ده. په دغه ناروغي کي د خرو ګېډه باد کوي.
د حميد په کليات کي د "قوصر" او "کوسر" په شکلو راغلې ده.

آه سرد نوي مين لره ښه نه دی
له تازه پرهار ه باد **قوصر** ژغوره
(کليات – ۲۱۵مخ)

په وييپانګه کي ئې معنا نسته.
بل ځای:

چې وهلی د مظلوم د آه **قوصر** وي
مه کړه طمع د صحت له هغه رېشه
(۲۳۲– مخ)

يا:

لا ئې اور د غـــم تازه د خسو خار کړ
دې **کوسو** ئې هلک زخم لوی پرهار کړ
(۳۶۴- مخ)

***

**گرگه:**

گرگه د وچ لرگي کوندې ته وايي. د ښاخو تر وچېدو وروسته د يوې درختي (وني) د تنې پاته برخه. کونده سمه منظمه اره کړه سوې وي، خو گرگه هسي تېره و بېره وي؛ په تبر سره کنډوکپر سوې وي.

حميد وايي:

عـشق پـه زړه د تـن پـرروړو کلـه لـگي
دا چې نـه کـا اور اثـر پـــه لنده **گرگـه**
(کليات - ۲۳۹مخ)

ميرزا خان وايي:

د وصـال راحـت بـه هيـڅ ورڅخـه نـه وي
د هجران پـه اور کـي سوځي لکـه **گرگـه**
(۱۷۶- مخ)

شمس الدين کاکړ وايي:

لکـه اور نـه کـړي اثـر پـر لنـده **گرگـه**
هيــڅ اثـر رابانـدي نـه کـا نـصيحت
(۴۰- مخ)

گرگ (د لومړي په زور) د اينې (جگر) يو راز ناروغي هم ده. گرگ د پسونو د پوست ناروغي هم ده. په کندهار کي يو متل دئ چي وايي:

**"گرگه ! بله چاره دي نسته بې له مرگه".**

**شمس الدين کاکړ وايي:**

څه خاصيت و ستا د لب په قنبيله کښې
چې ئې ويوست زما له زړه د هجر **گرگ**
(۷۷-مخ)

**قنبيله يا گنبيله يو راز دارو دي.**

***

**گړۍ*:**

**د (گړۍ) ويى د لحظې، شېبې، ساعت په معنا په لوېديځه لهجه کي ژوندى او جنس ئې مونث (ښځينه) دئ. په نورو لهجو کي ئې جنس مذکر دئ.**

**خوشحال خان ئې هم مونث جنس راوړى او له "وړۍ" سره ئې قافيه کړى دئ. دى وايي:**

کـه سـر د ښـځي سپـيني وړۍ شـي
زړه ئـې و... تـه هـره **گـړۍ** شـي
سـړى نـه ده لکـه پيـرى ده
چي... پـرې [illegible] شـي هالـه سـړى شـي
(رباعيات - ۲۲۲مخ)

**رحمان بابا ويلي دي:**

---

*گړۍ د ساعت په مانا سره، او گړى (مذکر) د شېبې په مانا سره:
رنگ دي ولي بيا ژړى - ژړى دئ
راباندي واچوه لاسونه يو گړى - گړى دئ
(ع. پالوال)

پـه يـوه **گـړۍ** ئـې مـخ وي
پـه يـوه گـــړۍ ئـې شـــا

(۲۰- مخ)

ښاغلی پالوال صاحب (گړۍ، گهړۍ) هندي لغت بولي او د رحمان بابا په دغه غزل کې چي شپږ ځایه (گړۍ) او لس ځایه (ساعت) راغلی دئ، دې نتیجې ته رسېدلی دئ چي دغه شپږ ځایه (گړۍ) د رحمان خپل لغت نه دئ او د بل چا لاسوهنه ده (وگ: معیاري پښتو- ۲۳۵مخ).

میرزا حنان بارکزي (گړۍ) مونثه کلمه گڼي. دی وايي:

پیروي هـــره **گـــړۍ** د هــغو بــويه
چـي ئـې خـاوري د بېـديا وي پـه گـذرزر

(۵۹- مخ)

***

**گلقند:**

طبیبان د گل گلاب پاڼي په پسرلي کي په مخصوصو دېگو کي د عرق ایستلو له پاره اچوي او عرق (ارَغ) ئې باسي. د ارغ تر ایستلو وروسته د پاڼو تفاله له بورې سره گډوي او يوه خوږه او خوندوره ماده ځني جوړوي، چي د نس د درد او باد له پاره ئې ناروغانو ته ورکوي. دغي خوندوري مادې ته گلقند وايي او د کندهار خلک ئې له ناروغۍ پرته هم کاروي. میرزا خان ويلي دي:

او قـــوت بـه دي هـر دم پـسې زيـاتيږي
چي علاج ئې په دا هسي شان **گلقند** کړې

(۲۲۷- مخ)

***

**ګنج:**

خزانه، د يو راز شيانو د ذخيرې ځای؛ د يو راز شيانو د ډېربښت ځای.

حميد وايي؛

بيا ئې څه نوې متاع په بازار راغله
چې ئې واخيست نوې **ګنج** نوې بازارنن
(د عبدالحميد مومند ديوان – ۲۱۸مخ)

دا کلمه د عبدالحميد مومند د کليات په ۱۶۶مخ او د درومرجان په ۶۸مخ او د عبدالحميد ديوان په ۸۹ مخ کي "کينج"؟ راغلې ده. دا لغت ئې په پورتنيو چاپو کي معنا کړی هم نه دئ. زما په فکر ئې د هيوادمل ثبت سم دئ. (کينج) لغت زه د کاتبانو مسخه بولم. په مروجو قاموسو کي مي دا راز لغت په سترګه سوی نه دئ.

په کندهار کي (ګنج) کلمه د (بازار، منډيي ، نخاس او مارکيټ) په معنا همدا اوس ژوندۍ ده او ظفر اللغات هم په همدې معنا ثبت کړې ده. د کابل او شاوخوا سيمي خلک د (نخاس) کلمه پر همدې ځای کاروي. په زاړه کابل کي د (نخاس) په نامه يوه سيمه هم وه. (د لرګو ګنج)، (د پسو ګنج)، (د خرو او غويو ګنج)، (د وريجو او غوړو ګنج) ټول د کندهار د اوسني ښار مشهور او معلوم ځايونه دي.

د حميد مومند په پورتني بيت کي راغلی "کينج" همدا (ګنج) دئ.

د شمس الدين کاکړ په کلام کي هم د (نخاس) کلمه په

**همدغه معنا راغلې ده:**

"شمس الدین" غوندې زرګوني
ئې خر ښېږي پر **نخاس**
(۶۲- مخ)

***

## ګوار:

د کندهار خلک په ښکنځلو کې"د ګوره زو" جمله کاروي. زما یو وخت داسې فکر ته راغلی وه چې دلته به له "ګوره" څخه مراد "پرنګی" وي ځکه "پرنګي" ته په هندوستان کې"ګهورا" وایي چې اصله معنا ئې "سپین" ده؟

خوشحال خان په سواتنامه کې ویلي دي:

درست عالم ئې د **ګوارو** په شماره دی
تر تاجکو لا په زیست کې آواره دی
(۲۲- مخ)

هجري ویلي دي:

زه ختک په چا خوږې کړم سترګې خپلې
تور **ګوار** پکښې میشته نوم ئې خُبیر شه
(۴۵۶- مخ)

***

## ګورم:

(فشار ئې پر دوهمه څپه دئ).
د غواوو ګله.

کندهاریان هغه چا ته چې د پسو رمه پیایي، شپانه وایي، هغه چې غواوې او غوایي پیایي، ګوروان ئې بولي (ګوروان ته په نورو

لهجو کي "غوبه" هم ویل کېږي[1].

هغه چي د اوښانو ګله پیایي ساروان ئې بولي.

خوشحال په دستارنامه کي ویلي دي:

نه یو سورد تیرانداز و

نه **ګورم** د نیزه باز و

(۵۱ - مخ)

***

**ګوندي***:

(فشار ئې پر لومړۍ څپه دئ) د (شاید، ممکن) په معنا.

د کندهار په لهجه کي ژوندی ویی دئ. په نورو لهجو کي د (ګوندي) پر ځای (ګنې) کلمه کارېږي.

خوشحال وایي:

**ګوندې** وي چې د وصال په خوښی خوښ شي

چې خوشحال په جداییه کې ډېر نول کا

(۴ - مخ)

یا:

---

[1] حمید ویلي دي:

شپون **غوبه** څکه سنګدله ویلاړه شي

چې روزګار ئې وي له کانو د بیدیا

(۵ - مخ)

* هیله ده، امید کوم، آرزو.

**ګوندي**، **ګوندي** مي دلبر په خندا راسي دلې

نوئ غم به مي له زړه څخه جلا سي دلې

د شاعر نوم مي ئې هېر دئ (ع. پالوال)

ما وې زړه ئې **گـونـدې** نرم په ژړا کړم
چې اشر پرې ژړا نه کاندي څوک څه کا

(۸ - مخ)

**دغه راز په دستارنامه (۲۳۱- مخ) کې کښلي دي: "... بل حماقت دی له جهله- سړی گوندي په ډېر علم تربیت خلاص شي".**

***

**لار*:**

**دا لغت د پښتو په ختيځه لهجه کي (لاره، ليار) ويل کېږي. د کندهار په لهجه کي ئې (لار) بولي. د خوشحال کليات په شپږم مخ کي د (لار) په شکل راغلی دئ او ورته ليکلي ئې دي چي په چاپي دېوانو کي د (لاره) په بڼه ثبت دئ او داسي ښکاري چي دوی له خطي نسخو څخه اخيستی دئ.**

تلم په خپله **لار** راسره مله شوه نگارا
شوخه، غمزه گره، خنده رويه، خود آرا
(۶ - مخ)

**يا:**

يار مې لاړ شو په دا **لار** ورپسې دروم
که ډېر سترې په دا **لار** يمه په ځای يم
(۱۳۸ - مخ)

**يا:**

---

* لارۀ: په کندهار کښي د موزيک طرز دئ. کله چي بدله ورسره نه وي، هغه تشه لارۀ ده (ع. پالوال).

دیار مهر ترما راغی زمــا مهر تریاره
رښتیا ده دا خــبره چې د زړه ده **لار** د زړه
(۲۹۷– مخ)

**دغه راز په سواتنامه کي راغلي دي:**

درې څلورمیاشتي دا **لار** وي ښه روانـه
د پــر آفـت لـري لـه برفـه، لــه بارانــه
(۸ – مخ)

**رحمان بابا هم (لار) کلمه له لویدیځ ګړدود سره سمه راوړې ده.**

چــه ویریــږي لــه کــوهي او لــه ګړنګــه
هغــه نــه درومــي پــه **لار** د دې دنیــا
(۵ – مخ، ۴۸– مخ)

**هجري هم پر دغه لار روان سوی دئ:**

ربــه **لار** ئــې پــه ریــاض کــړه برابــره
چه هــر ګـل ئـې لـه عـذارو لـون سـود کـا
(۱۳– مخ)

**عبدالقادر خان هم دغه لار اخیستې ده:**

نن ئې بیا کښېښو په سر باندې دستار کج
لکه مست هــاتي په **لار** کوي رفــتار کج
(۴۸– مخ)

**حمید مومند ویلي دي:**

لاړ بـه کله شي د عـشق پــه ستغو غاښو
دا پـه سـمه **لار** کې ستړی ستومان عقل
(کلیات – ۱۳۷مخ)

چې ئې **لار** لیدلې نه وي رهبري کا
رښا ورځ به توره شپه کاندي په وعظ
(۷۶- مخ)

**یا:**

پر دا عامه **لار** ئې لویه لومه کښېښوه
هیڅ دانا ځني خلاص نه شو بې قانعه
(۱۵۸- مخ)

**د کندهار شاعر میرزا حنان بارکزی وایي:**

ستا د قد د راتلو **لار** گوري دلبره
چې د باغ تر دېوال سروي سر بدر کړ
(۶۳- مخ)

***

**لولپه:**

**سر تر پایه یو مخیزه مکوټ کېدل.**

**عبدالقادر خان ختک ویلي دي:**

گاه باران شي د ژوندون او به کا تویې
کله اور شي **لولپه** کا تمام شهر
(۶۰- مخ)

**په حاشیه کې ورته کښلي دي چې په (الف، ک) نسخو کې دا مصرع داسې ده: "گهی اور شي سرې لمبې کا تمام شهر". دغه لمنلیک چې ما ولووست، په زړه کې مې و ویل چې په "لولپه" او "سرې لمبې" کې یوه هرومرو د کاتب لاسوهنه ده. دواړه د عبدالقادر خان کلام کېدلای نه سي. له امکانه لیري نه ده چې د کاتب په لهجه کې دې د "لولپه" کلمې وجود نه درلود، نو ئې په**

"سرې لمبې" سره اليشه کړې ده.
(لولپه) په کندهارۍ لهجه کې مروجه کلمه ده. مولوي بريالي ويلي دي:

که لا مکوتې و **لولپه** ســم پرېوه حال یمه
د یکرنګۍ د توحید قول مي ایمان کی پوخ
(اهار – ۲۷مخ)

***

لېوه:

لېوه هغه جناور ته وايي چې د کندهار په لهجه کې ئې بل نوم (شرمښ) دئ او په پارسي ور ته (ګرګ) وايي:

ډاکټرعبدالرازق پالوال د (لېوه) مفهوم لري. څه پراخوي او ليکي: "لېوء په پښتو کښې عموماً د شرمښ معادل پېژندء کيږي. خو په ځينو لهجو کښې لکه د هلمند او بريښتان پښتو، لېوء د ټولو ځيروُنکوُ حيوانانوُ مجموعي نوم دئ. يعني چغال هم لېوء دئ، برو‌ې هم لېوء ده؛ کوړ هم لېوء دئ، پړانګ او زمري هم لېوان دي. د لېوء نوم له يوناني او لاتيني څخه و پښتو ته راغليځ دئ. په دغو ژبو کښې لېوء و زمري ته ويل کيږي...". (معياري پښتو – ۱۷۰مخ. نقل قول د ډاکټر پالوال په ليکدود دئ).

د (لېوه) لغت په کلاسيک ادب کې زيات راغلی دئ او دا چې په کلاسيک ادب کې (لېوه) او (شرمښ) دواړه راغلي دي، د ډاکتر پالوال استدلال په پياوړی کيږي. خوشحال وايي:

عاشق يو لکـه **لېوه** پـه شـمال پـايي
بـل پـه غـټـو سترګو خوب کـا لکـه سويه

(۲۸۲– مخ)

**رحمان بابا وايي:**

نه **لېوه** په آدميت آموخته کېږي
نه اميد د مروت شي له افلاکه
(۱۶۸- مخ)

**هجري وايي:**

په دوو چشمو مي شيرينه تر ليلی ده
خو په زړه مي خرابي لکه **لېوان** کا
(۱۲- مخ)

**قادر خان خټک ويلي دي:**

په معنی کي بشر نه دی پړانګ **لېوه** دی
چې د ده له لاسه مومي بشر شر
(۵۶ - مخ)

**کامګار خټک ويلي دي:**

د مجاز په صورت څرنګ ښايسته ئې
په معنی کې يا **لېوه** ئې يا بقر
(۳۸ - مخ)

په ظفراللغات کې (لېوه) په (ګرګ) او (خرس) سره معنا کړې دئ او د خوشحال فرهنګ مولف او د هغه په پيروي د خوشال خټک کليات په ويپانګه کي شرمښ، چې دوی دواړه ئې د خوشحال د وينګ پر خلاف "شرمخ؟" ليکي، او لېوه يو حيوان بللی دئ (۱۳۱- مخ).

د کلاسيکو شاعرانو په کلام کي ځای ځای داسي قرينې سته، چي (لېوه) دي د کندهارۍ لهجې په شان د شرمښ له پاره کار سوی وي. اشرف ويلي دي:

هر ساعت ئې د ستم په داړو نیسي
د یاري یاد لکه **لېوه**، هجري بره شه
(۱۱۴- مخ)

**یا بل ځای:**

څو یاران لکه رمه هسې غنچه وو
د هجران **لېوه** په زور سره جدا کړو
(۱۱۱- مخ)

**په دې دوو بیتو کي د (رمه)، (بره) لغتونه پر دې خبره دلالت کوي چي (لېوه) دي د (شرمښ) په معنا راغلی وي.**

***

**مالامال:**

**تر څو کي پوري ډک لوښی.**

**خوشحال وایي:**

خوبی د عمر تر څلوېښت کاله ده
چه په ځوانی کښې ماله ماله ده
حواس که درست لري شکر وکاږه
څو دي ودانه د عمر ځاله ده
(رباعیات-۶۸ مخ)

***

**ماهی، ماهیان:**

**په لوېدیځه لهجه کي د (کب) له پاره (ماهی) لغت عام کارېږي. په کلاسیک ادب کي هم د (ماهي) کلمه ډېره موندلای سو.**

**خوشحال خان ویلي دي:**

ستا وصال لکه دریاب دی، زه **ماهی**
په هجران دې هر زمان دی په ما، هی
(۳۳۲-مخ)

**رحمان بابا وایي:**

لکه غوټې چه **ماهیان** خوري په دریاب کښې
په هوا کښې هم دغه کاندي مرغان
(۸۲-مخ)

**رحمان بابا (کب) هم راوړی دئ (۹۱ - مخ).**

**هجري وایي:**

هر صنم وخپل مین ته حمیده وي
**ماهی** خوښ په بحر نه وي تر تالاب
(۳۲-مخ)

**میرزاخان ویلي دي:**

د **ماهي** له اوبو هیڅ اندیښنه نه شي
سمندر څه پروا نه لري له حرقه
(۱۶۹-مخ)

***

**متکا*:**

**دا لغت هم په کندهاری لهجه کي سته او یو راز اوږده پیت بالښت ته ویل کیږي. خوشحال خان ویلي دي:**

کله مست د مال و ملک شي
کله مست شي د صهبا

---

* عربي لغت دئ (ع. بالوال).

د مسند د پاسه کښېني
لور په لور دي **متکا**
(ارمغان – ۴۵ مخ)

په کندهار کې ما دا ټوکه اورېدلې ده چې وایي: د یو چا کور ته مېلمه راغلی وو. د کور خاوند پر زوی بږغ وکړ، چې کاکا ته دي متکا راوړه. مېلمه په متکا نه پوهېدئ، فکر ئې کاوه چې متکا د خوړلو شي ته وایي او په جواب کې ورته ویلي وه "از متکایت قربان، بان که اولادها بخوره". خود به نو د مېلمه ژبه پاړسي وه، چې جواب په پاړسي ویل سوی دئ.

د بالښت له پاره خوشحال خان د "سروېړدی" لغت هم راوړی دئ، په کندهار کښې عمومیت لري.

پروت به ئې په خاورو تر سر لاندي او مه خښته
اوس که دي **سروېړدی** نهالئ کاشاني دی
(ارمغان – ۸۵ مخ)

د "سروېړدی" کلمه ما د کندهار ښار د اوسېدونکو ناصرانو له سپین ږیرو څخه اورېدلې ده.




***

**مړونه، مړانه – مېړونه، مېړانه:**

خوشحال خان مړانه، مړونه، مړنتوب له کندهاري لهجې سره سم لیکي.

هم مې دولت شته هم مې ملکونه
هم مې ځوانان دي هم لوی لوی غرونه

دا واړه هیڅ دي په کوم حساب دي
چې پکښې نشته ښه ښه **مړونه**
(رباعیات – ۱۲۰مخ)

پوهاند زیار صاحب هم دا خبره تایید کړې ده (۳۸مخ). زه باید پر زیاته کړم چې د دې پر څنګ خوشحال خان "مېړه" له لوېدیځ ګړدود سره سم زیاتره د "شوهر" په معنا کاروي.

لاس مې که هر څو په دنیا ښخ دي
نه چې دولت مې د غاړې مخ دي
زه ئې **مېړه** یم دنیا مې ژګه ده
زړه مې په هر څه وربانديې یخ دي
(رباعیات – ۱۳۶مخ)

دغه راز په دستارنامه کې مېړه د (شوهر) په معنا راغلی دئ:
"... که په هغه خونه د دې په ویل د دې مېړه ومري دا به هم هسې راضي وي" (۱۱۴مخ).

په مړانه د (شجاعت) په معنا داسې راغلې ده:
"... مړانه دا ده چه په غلیم راشي – یکدله وزباندې مې یک جلب وکړي ..." (۸۰ مخ). حمید وایي:

ترکو ډېر په خپلو زلفو دي نیولي
زاهدان دي لافي نه کا د **مړانې**
(کلیات – ۳۰۸مخ)

رحمان بابا هم "مړنی" د صفت په توګه کاروي نه "مېړنی".

**مړنی** ویلی بویه و هغه ته
چه بې وجهې آزار نه کا هیڅ سړی
(۹۸ – مخ)

هجري ويلي دي:

عابد خان مصلحتي هم **مړنی** دی
د غلیم سره خالد لکه تبر دی
(۱۹۰– مخ)

حميد مومند وايي:

آخر حسن زړه ورمه گوره حمیده
**مړني** د لښکر درومي په دنبال پس
(د عبدالحمید دیوان – ۶۴ مخ، در او مرجان – ۳۸مخ)

په کليات (۹۱مخ) او د عبدالحميد مومند ديوان په (۱۲۵مخ) کي "ميړني" ليکل سوي دي.

د حميد د کلياتو د نيرنگ عشق په برخه (۳۸۰مخ) کي د شاهد د توصيف په ترڅ کي د "مړنيو" کلمه راغلې ده:

په دوو سترگو، کينه گر لکه مزری
د پرهېز لــه **مړنيو** وړي بری

دا بيت له وړاندي او وروسته بيتو سره د سياق له مخي ما ته سم ثبت سوی نه ايسي. په بيت کي د "وړي = ميبرد" فعل بايد "وړی = بُرده است" وي. په دې صورت کي نو د "مړنيو" شکل هم بايد بدلون ومومي او د څلورو څپو پر ځای بايد.درې څپې "مړنو" سي او همدا ئې ما ته سم ثبت ايسي:

په دوو سترگو، کينه گر لکه مزری
د پرهېز لــه **مړنو** وړی بری

دغه راز په ۴۹۸ مخ کي ئې هم "مړنو" ليکلی دئ.

په کندهاری لهجه "مړانه" د بلوغ په معنا هم استعمالېږي. په بلانی کال مړانی ووهلم. يعني بلوغ ته ورسيدم. (د بلوغ له پاره

"کوزه اخیستل" اصطلاح هم مروجه ده).

***

**ملا چرګک:**

یو مرغه دئ چي په عربي ئې (هدهد) بولي. ملا چرګک ته په نورو لهجو کي "ګوډی چرګ" وايي. په کندهاری لهجه کي ئې ملا چرګک بولي[1]. په کلاسیک ادب کي دا دواړه نومونه راغلي دي.

میرزا خان انصاري وايي:

سـجده څـو کـړې بـې حـضوره
د ناسـوت کـښې **ملاچرګکـه**
(۱۷۴– مخ)

خوشحال وايي:

**ګودی چرګ** تر مځکه لاندي او بهویني
ولـي نه ویني په مځـکه باندي لـومه
(۲۴۰– مخ)

***

**میاشت:**

د خوشحال خان په کلام کي موږ د (میاشت) کلمه هغه راز مومو، لکه د پښتو په لویدیځه لهجه کي چي په عام ډول مروجه ده. په دې لهجه کي (میاشت) دیرشو ورځو ته هم ویل کیږي او د (سپوږمۍ) اولو او آخرو شپو ته هم. د خوشحال خان په دې بیتو کي میاشت د (سپوږمۍ) په معنا راغلې ده:

---

[1] د دغه مرغه د پوره پیژندني له پاره وګورئ: ښکار او کندهار – ۱۱۷ مخ.

نوې **میاشت** به دې په مخ گوري وگړي
کډ په مخ باندي دې جوړ سم د سمند کا
(۲۴– مخ)

څه لره اې **میاشتې**! ته خپل مخ ستایې و ما ته
یار په مخ مې نور ځې ستا په مخ درومې تورتم
(۱۲۴– مخ)

د دستارنامې په ۱۹ مخ کي بیا میاشت د (month) په معنا راغلې ده: "... چه تنومند شی، تر شپږمې میاشتې پوري ئې قابل د زوولو کا– په نهمه میاشت وزېږي ...".

او په (۹۱– مخ) کي بیا د "سپوږمۍ" په معنا کارسوې ده.

په فراقنامه ۱۰مخ کي هم د سپوږمۍ په معناراغلې ده "میاشت دوه نیمې ورځې په هر برج کښې مقام لري...".

رحمان بابا که څه هم د "سپوږمۍ" لغت مکرر کاروي خو یو ځای دوه ئې "میاشت" د سپوږمۍ په معنا راوړې ده.

خم ابرو د یارمي نقش په لېمه دي
لکه **میاشت** چي په لوی بحر کښې لیده شي
(۲۱۰ – مخ)

عبدالقادر خان هم میاشت د سپوږمۍ په معنا کاروي:

ښکلي مخ ئې **میاشت** خجله کړه نمر هم لا
قد ئې سرو کړ سرکوزی عرعر هم لا
(۳۵– مخ)

د خوشحال خان په پېښور چاپ کلیات کي چي ځای ځای "میاشته" راغلې ده (د پوهاند زیار صاحب "د خوشال ادبي پښتو – ۳۲مخ" په حواله)، ما ته د خوشحال خان خپل تلفظ نه ایسي.

حمید مومند وايي:

سرتړوني نوې **میاشت** تر سر جار باسي
د هر ښکلي درد په سر دی ستا له درده
(کلیات – ۲۰۶مخ)

***

**مېرمن:**

دا لغت په عام ډول د ښځې له پاره اوس عام سوی دئ. په کندهار کي "د کور مېرمن" خاص مفهوم لري او هغې ښځې ته ويل کېږي چي د کور سرښته، اداره او تنظيم ئې پر غاړه وي.

**خوشحال خان وايي:**

تر **مېرمني** وينځه ښه ده په ښه خوی کښې
نه مېرمن چي نه ئې خوی وي نه بشر
(ارمغان – ۶۰مخ)

**رحمان بابا ئې په همدې خاص مفهوم راوړي:**

نه رسېږي ستا و حسن و ته حوره
څه به رسي و **مېرمن** و ته مزدوره
(۱۴۰– مخ)

**حمید وايي:**

لږ لږ ښه هم مناسب له نفسه نه دي
غله **مېرمن** کاندي ځان موړ په څکه څکه
(کلیات – ۲۳۸مخ)

**میرزا خان ويلي دي:**

ته گدای د ولایت ئې
شاه د دوو کونو **مېرمن** ده
(۱۲۵– مخ)

**يابل ځای:**

اې حاجي له پټه بخته سيالي مه کړه
چې د کور **ميرمن** ونه وينې مه وياړه
(۱۴۰– مخ)

***

**نابوده:**

**په لغت کې (بد، د "ښه" ضد) ته وايي نابوده سړی يعني ډېر بد سړی او په اصطلاح کې دغه لغت د (دنيا) له پاره کارېږي. نابوده دنيا، يعني فاني دنيا، هغه دنيا چې د خدای نېکانو نه ده خوښه کړې. دا لغت په کلاسيک ادب او لوېديځه لهجه کې ما په يوه معنا لوستلی او اورېدلی دئ. خوشحال خان ويلي دي:**

هم خدای غواړې نادانه! هم فاني دنيا **نابوده**
په څو به دې روزي شي، فکر وکړه دا دوه سوده
(۲۰۷– مخ)

**شمس الدين کاکړ وايي:**

څوک به ښادي کړي په دا **نابوده**
څوک به سودمن شي د دې له سوده
که ئې مقصود شي تمام په لاس کښې
خالي به درومي له دې مقصوده
(۱۴۷– مخ)

**د کندهار ښځمني وايي: "چې زما تر سر سې تېره، خدای دې کې دا نابوده دنيا ډېره".**

***

**ناره*:**

د کندهار په لهجه کي (ناره) د فاصلې د واحد په توګه هم کارېږي. دا چي وايي: "پلانی کلی له دې ځایه څخه یوه ناره لیري دئ". مخاطب پوهېږي چي دا فاصله څونه ده؟ خوشحال خان هم ناره د فاصلې له پاره راوړې ده.

که رښتینی محبت لرې مه **ناره**
په یوه ناره بیل شوی یار و ژاړه
(۲۹۱–مخ)

د (ناره) بله معنا (مسلسل ژړا، چیغاري) ده.

"دا هلک ولي داسي په یوه ناره دئ"، یعني ولي پله پسې (پرله پسې) ژاړي او ژړا ئې نه درېږي. عبدالقادر خان وايي:

که غمونه د دې خپل خاطر ښکاره کړم
لوی هلک به همه واړه په **ناره** کړم
(۱۰۲–مخ)

دلته له "ناره" څخه مراد (ژړا، فریاد) ده.

***

**نالي**:**

توشک، کوربچه.

د کندهار په لهجه کي په همدې شکل مروج ویی دئ، خو په نورو لهجو کي ور ته (نیالي) ویل کېږي.

عبدالقادر خان ویلي دي:

---

* اصل ئې عربي نعره ده (ع. پالوال).

** نالي پلنه او کوربچه به ئې په نیمایي پسروره وي (ع. پالوال).

اسمان خونه د فقیر ده
**نالي** مځکه نمر لحاف
(۷۷- مخ)

**شمس الدین کاکړ ویلي دي:**

خدای به کله داسي وکا، چي یو کټ یو مو **نالي** وي
چي زه پروت یم یو طرف، نازنین پر بل طرف
(۷۱- مخ)

***

**نالي:**

**د رود یوه برخه، د رود (سیند) یو ښاخ.**

**ښاغلي ډاکټر پالوال صاحب لیکلي دي: " له رادۍ یا سینده څخه چي یو ښاخ بیل سوئ وي، او اوبه ئې دوه گرایه یا درې گرایه تر رادۍ لږي وي، ناله بلله کیږي" (معیاري پښتو- ۱۷۱مخ).**

**عبدالقادر خټک ویلي دي:**

چي ډیر ډیر د جدایي له غمه ژاړم
په رخسارو کې مې سازې شوې **نالې** *
(۳۴۸- مخ)

**حمید وایي:**

که یار غوا ړې هومره ژاړه څو درځي "عبدالحمیده"
دا په دا چې دُر موندہ شي په دریاب نه په **ناله** کې
(کلیات - ۳۰۲مخ)

***

---

* د کوږک په سهیل کښي "ناله" و "لښتي" ته ویل کیږي چي د قادر خان بیت سم ورسره وایي (ع. پالوال).

**نامي:**

نامتو، د وتلي نامه خاوند (نوموتی).

د کندهار په لهجه کي(د نامي زوی) د قهرمان په معنا کارېږي.

هجري وايي:

د لیلی غونډې رشتیا وکړه **نامي** شه
په مجنون پسې وطن کړه هندوبار
(۴۶– مخ)

***

**ناویات:**

نادر، انتیک.

خوشحال خان په سواتنامه کي ویلي دي:

په دا هسې شان کتاب ئې مباهات دي
د جامي تر "هفت اورنگ" ورته **ناویات** دي
(۴۷– مخ)

***

**نجار:**

په کندهار کي د (ترکاڼ) لغت باب نه دئ او هر وخت ئې پر ځای باندي (نجار) ویل کېږي. په کلو کي ترکاڼ بلل کېږي، او دا متل هم سته چي: "ترکاڼي د بیزو کار نه دئ".

حمید مومند هم د (نجار) ویی راوړی دئ:

چې د عشق **نجار** اره کړم سر تر پایه
تن مې پروت تختې تختې، شه دړه دړه
(کلیات – ۲۲۲مخ)

شمس الدين كاكړ وايي:

بې میوې ونه که پرې که
پر **نجار** نه شي غضب
(۳۸-مخ)

***

**نس***:
په لوېدیځه لهجه کې د (ګېډه) کلمه زیات استعمال نه لري او پر ځای ئې (نس) وېی کاروي. خوشحال خان هم سره له دې چې (ګېډه) هم راوړي خو (نس) ئې ډېر راوړی دئ.

په کاته شم و عالم وته حیران
چې د **نس** دپاره څه کا دا سګان
(۱۵۳-مخ)

یا:

په خوارۍ کې، زیست روزګار تر مرګ بتر دی
یا د بل **ګیډه** یا خپله ګیډه بژه کړه
(۳۰۲-مخ)

د رحمان بابا په دېوان کې هم "نس" او "ګېډه" دواړه راغلي دي:

**نس** په خاورو په خس ډک ښه دی بې غمه
نه د غم په خاورو خس پخه حلوا
(۱۳-مخ)

که تمام جهان په خپله **ګېډه** وخوري
یاد به نه شي په درود و په دُعا
(۱۳-مخ)

---

* د آس او خره د نس او ترمخنۍ پښو تر منځ، چې تانګ پر تړل کیږي، ګېډه ئې بولي.

**دغه راز هجري ويلي دي:**

مخ د مځکي که فراخ دی ستا پر څه دی
ستا نصيب د دې په **فس** کښې درې ذراع
(۶۷ – مخ)

**عبدالقادر خټک ويلي دي:**

که وصال عبدالقادره د يار غواړې
يو قدم په دنيا کښېږده بل په **فس**
(۶۷ – مخ)

**حميد مومند د "نس" لغت خورا ډېر کاروي:**

اې مدام د **فس** په زړه مبتلا
ځان ته ولې ويښوې ويده بلا

**کامګار خټک وايي:**

واف د روح مې په قفس د تن زهير شو
چې انيس ورسره **فس** لکه عقيق شو
(۸۱ – مخ)

***

**نغاړل:**

**تاوول، پېچل.**

**په مشتقاتو کي ئې (نغاړکې، نغاړې*) د اسم په توګه د کندهار په لهجه کي عام لغت دئ [چي د کوچنې نالي (نيالي) معنا لري].**

**د کاکړو په باب ويل کېږي: "کاکړ څه کي؟ کاغذ په ګوتو**

---

* نغړې او نغاړکې په استعمال کښي تغر دئ، خو جوړښت ئې بېل دئ. نالي کېداى نه‌سي (ع. پالوال).

نغاړي، يو شر د خدايه غواړي"*.

خوشحال په سواتنامه کي داسي ويلي دي:

د دنيا حرام، حلال وبله **نغاړي**
همه مدعي دي چې خداى غواړي
(۵۸ – مخ)

رحمان بابا وايي:

تمامي جهان لمن راخخه **نغاړي**
سپين زړوكى مي اغوستى تور كودى** شوم
(۷۷– مخ)

مولوي بريالى وايي:

د دماغ معلم مي بس بس راته وايي
گمنامي مي لمن **نغاړي** په تابوت
(اهار – ۱۵مخ)

***

**نونس:**

نزده (پارسي)، ۱۹ عدد.

دا عدد په نورو لهجو كي (نولس) ويل كېږي او د لوېديځې لهجې تلفظ ئې (نونس) دئ. خوشحال خان ئې هم (نونس) ليكي.

څه صفت د هسې حسن په غزل كړم
چې په **نونس** بابه كل مشكل پسند دى
(۳۱۷– مخ)

---

* "كاكړه يم، نيم گز تر نورو لوړه يم؛ پلو په گوتو نغاړم، يو شر له خدايه غواړم" (ع. پالوال).

** كودى هم له مشتركاتو ښځه دئ، كودى د مات خاورين لوښي لويه ټوټه وي او

د خوشحال خان خټک د دیوان په ټولو چاپو کي، له ارمغان پرته، "نونس" ثبت سوی دئ (د کامل مرحوم چاپ راسره نسته)، څکه نو څوک ویلای سي چي همدا به ئې د خان خپل تلفظ وو.

***

**نمای:**

په کندهار کي "نمای، نمایداره" د ښایست، موډ، فیشن له پاره کارېږي. خوشحال ئې هم په همدې معنا راوړي. دی په دستارنامه کي لیکي: "خبر شه چه دستار په سر کول د شیوې او نمای د پاره نه دی. دستار د مرد شرم او عزت دی". (دستارنامه - اول فصل - ۴ مخ - د پیښور اکیډیمی چاپ - ۱۹۹۱ع).

رحمان بابا وایي:

چي یو غاښ په خوله کښې زوړند شي یا ووزي
درسته خوله پرې **بدنمایه** شي هرګور
(۱۴۵- مخ)

هجري وایي:

سره کونډۍ ئې په مړوند عجب **نمای** کا
هرګز مه شه په آفت د ګردون ماته
(۳۴- مخ)

عبدالقادر خان ویلي دي:

چې تنکۍ لښته وې وخت د **نمای** وو
هر حرکت دي زما په رای وو
چې ښاخ شوې شوخ شوې تبر تر ښځ غواړې
محنت مي واړه ضایع بې ځای وو
(۳۷۷- مخ)

***

**پسور :**

**د (عرض، بر) په معنا په کلاسیک ادب او لوېدیځه لهجه کي په ختیځو لهجو کي له (پسور) او (سپور) دواړو څخه کارېږي. په لوېدیځه لهجه کي بیا دا دواړه لغته له (پ) ایستل سوي ده خو په کلاسیک ادب کي هم له (پ) سره یو (پ) سره تلفظ کېږي. په ځینو ځایو کي چي (پسور) د (سور) په شکل راغلی دئ، یقین ته په نزدې ګمان سره ویل کېدلای سي، چي دا به ئې د شاعر خپل تلفظ نه وي. مثلاً خوشحال خان د (پسور) لغت په مغیره حالت کي (پساره) کاروي.**

خبردار ئې په **پساره** په اوږده نه وي
چې دریاب تر کومه لاړ دی پهن تر
(۵۷– مخ)

**دلته که له (پساره) څخه (پ) وایستل سي، یو بې معنا شی ځني جوړېږي. د (سپور) ویی هم له (پ) سره یو ځای راوړي.**

د جهان بلا دې کل وي
خو دې نه شي ویی* **سپور**
(۶۸– مخ)

***

**پل** :**

**(د لومړي توري به زوه ره کي) معاف، بخښل.**

---

* دغه (ویی) د کاتبانو غلطي بولم، دغه به په ډېر احتمال سره "ولي" وي. ای "ولي" به داسي څوک ؤ چي خوشحال به په سپکه سترګه ورته کتل (ع. پالوال).
** بنایي پل به د خپل پخوانی لنډون وي – حق راخپل که! (ع. پالوال).

پــه دا کــم نــه شــي د گـــوهـــرو قــدر
د پـــوهو سترگـــو بانــدي **واتــه** دي
(رباعيات – ۲۹۴مخ)

دغي څلوريځي ته ئې په حاشيه کي کښلي دي: "ښايي واته د باور په معنی وی څکه وتنه په دغه معنی په ادب کښې ډېره (واته، وتنه) دواړه د حاصل مصدر شکلونه دی". دې حاشيې ما ته دا فکر پیدا کړ، چي د محشي په لهجه کي "د سترگو واته*" وراشه نسته. که وای داسي غير محتمله معنا ئې نه ورته کښله.

***

**واري:**

تر جارېدل، تر قربان کېدل.

عبدالقادر خان وايي:

بل که هر څو ښايسته وي خدای دي نه کا چې ئې گورم
تر يـــوه بانه د کښلي دي جهان شــه **واري واري**
(۲۸۴– مخ)

معصوم هوتک ويلي دي:

در **واري** سم، در واري سم آزمو ږ ښکلې کندهاره
آ اشـــرفه د ښـــارونو آ تاجـــداره آنامـــداره

***

**واله، ولې:**

دا لغت په نورو لهجو کي (وياله، ويالې) تلفظ کېږي. د

---

* رحمان بابا وايي:

په کاته، کاته مي سترگي په **واته** شي
چي خـــبر دي د راتلو راباندي وشي
له ياده څخه که په ديوان کښې و کتل سي ښه به وي (ع. پالوال).

لوېديځي لهجې وينګ ئې (واله، ولې) دئ، چې په کلاسيک ادب کي زيات موندل کېږي.

خوشحال خان وايي:

د بادشاهــانو چــي امرګـــان دي
د يــوه بحــر **ولــې** شــان شــان دي
**والــه** چــه لــويه کــه کــم لــبنتي وي
او دس پــاکي لــره واړه يکســان دی
(رباعيات – ۱۸۹مخ)

دغه راز په دستارنامه کي لولو:

"... د درياب ولې لکه د درياب د اوبو مزه هسې د ولو د جويونو د شهنشاه د حکم وتلی دی ..." (۱۶۸ – مخ).

خوشحال په فراقنامه کي وايي:

ګــاه د آه لمبــې تــر خــولې ځــي
ګــاه لــه دوو ســترګو **ولــې** ځــي
(۵۱ – مخ)

په سواتنامه کي داسي لولو:

په هر کلي په هــر کور کې ئې **ولې** ځي
هم ئې خوري، هم ئې هر لوري ته غلې ځي
(۴ – مخ)

رحمان بابا وايي:

ستا لــه غمــه مي پــه مخ باندي **ولــې** دي
لــړمي وپوښتــه لــه حــاله چــه ولــي دي
(۲۰۶– مخ)

کامګار ختک وايي:

په ژړا ژړا مې اوښکې نه وچېږي
په دا دوه **ولې** لوی بحر څرنګ کم کړم
(دیوان - ۶۲مخ)

پوهاند زیار صاحب "واله" د خوشحال خپل " ټبرني ګړدود" بولي (۳۷مخ). ګویا د خوشحال ټبرني ګړدود په دغه برخه کې له لوېدیځ ګړدود سره یو راز قاعده لري.

شمس الدین کاکړ د (ولې = ویالې) لغت داسي راوړی دئ:

چي جاري مي شوې **ولې** تر دواړو سترګو
لکه سرو نن د جوی پر کنار راغی
(۱۳۱- مخ)

د خوشحال په بیان کې دغه راغلي (جوی) ته، چي تر ولو (ویالو) ئې د غټوالي په حساب درجه وروسته ده، ته د کندهار په لهجه کي (لښتی) وايي.

خوشحال خان بل ځای وايي:

"... حفر نهر، د ولو جاري کول، د کوهي کیندل، باغ پر مرتب کول، دا کارونه په عمر جاوید شمارلي بویه"(دستارنامه - ۱۴۸مخ).

ښاغلی ډاکټر پالوال صاحب لیکلي دي، چي "د نالې نیمائي برخه اوبه چي له رادۂ څخه بیلي کړل سوی وي، پاتاو باله کیږي (پاتاو اصلاً یوناني لغت دئ). د پاتاو نیمائي اوبه چي بیل بهید ولري "وا- wa" نومیږي. د "وا" نیمائي اوبه "ښله" نومیږي. د "ښلې" نیمائي اوبه "واله" نومیږي ... د "والې" دریمه برخه اړبه "لښتی" نومیږي". (وګ: معیاري پښتو- ۱۷۱مخ)

**مولوي بريالي ويلي دي:**

اې زخمي ژړ بــــه دي سـي ګـل د هـوس وچ
چي غفلت دي کی جـاري **لښتي** د وس وچ
(اهار – ۲۸مخ)

***

**والی:**

**ګوشواره (پارسي) غوږوالی.**

**اشرف خان هجري په مغيره شکل داسي راوړی دئ:**

د قـيامت سـاعت نـازل پـه زمانـه کـا
هغـه دم چـي ئـې ژړنګـا شـي د **واليـو**
(۴۲۱– مخ)

***

**وچ موری:**

هغه کوچنی (ماشوم، طفل) چي مور ئې د ده پر يو کلني باندي بيا اميندواره سي يا ئې شيدې د کومي بلي پېښي له اسيته وچي سي، (وچ موری) بلل کيږي. په لس زره پښتو لغتونه کي دا ويی راغلی دئ او په "شيرسوخته" ئې معنا کړی دئ. نورو قاموسو هم اخيستی دئ. په لوېديځه لهجه کي هم عام استعمال لري.

ميرزا خان وايي:

دا جـــهان پــه نعمــت پــور دی
پــه خــواری کــي دی **وچ مــوری**
(۲۱۱– مخ)

***

**ورخ:**

ورخ د اوبو هغه دانه (دهانه) يا بند ته وايي چي له هغه څخه و

**کښت ته کُردو (کوردو*) ته اوبه ورځي. "ورخ اوبو یوول" اصطلاح هغه وخت کارېږي، چې کار تر کار تېر سوی وي.**

**رحمان بابا وايي:**

تـر **ورخ** تیـري اوبـه بیرتـه نـه جـاروزي
نـه جـاروزي تېـر سـاعت پـه بیرتـه بیـا
(۱۱۲- مخ)

**قادر خان خټک وايي:**

نه ګورې که وګورې احوال به مي معلوم کړې
ځي چې ځي په مخ زما د سرو اوښکو **ورخونه**
(۲۳۰- مخ)

***

**ورون:**

**د پښې تر زنګانه لوړي برخي ته په لوېدیځه لهجه کي ورون وایي. نوري لهجې ورته (پټون) وايي.**

**اشرف خان هجري ویلي دي:**

د حـرص تیغ دي ناحـق پـه غـاړه کیښو
پـرې غـوځ کـړی دي د صبر د آس **ورون** دی
(۴۷۴- مخ)

**یا:**

زه د یـار د عـشــقه چیرتـه ګـرېـز وکـړم
چه داغ کـړی مـي د زړه د آس **پټون** دی
(۴۸۱- مخ)

---

*کوردونه د پولي مربع شکله وېشونه دي (ع. پالوال).

**عبدالقادر خان ویلي دي:**

په قامت د مـوذن قیام پسو کړم
ښایسته مي په **ورانه** باندې سر ایښی
(۲۵۰-مخ)

**شمس الدین کاکړ وایي:**

تازیانه ور سره وصل لکه لم وي
یو دم نه وي له **ورنو** د ده جدا
(۳۱-مخ)

***

**ورى:**

**بار ته وايي.**

**عبدالقادر خان وایي:**

هسې د روند **ورى** ئې بار په ما ضعیف کړ
چي اسمان ور ته خپل ځان نیولی نه شي
(۳۰۰-مخ)

***

**هول:**

**وارخطایي.**

**په کندهارۍ لهجه کي هولکي (اولکي) وارخطا ته ویل کېږي. میرزاخان انصاري ویلي دي:**

د قیامت **هول** و هیبت را باندې تېر شو
د اجل پیاله ئې را کړه پر حیات شوم
(۹۲-مخ)

**شمس الدین کاکړ وایي:**

لـه دوا مـغزی پیچمه لـکه طـفل
زړه مـي **هـول** د طبیب لـه دوا وخوړ
(۵۹- مخ)

***

**یک لخته:**

په کلاسیک ادب کي زیات راغلی دئ. د کندهار په لهجه کي د (یومخیزه) په معنا رواج لري. خوشحال وایي:

یـا د مارغونـدي راضـي لـه خپلـه بختـه
چې د غـم لـه پوسته ووتم **یـک لـخته**
(۱۹۵- مخ)

یا:

په وخت د ښو گلونـو د وصال باده نوشلې
د زړه اندوه دې واړه دا عشرت یوسي **یکلخته**
(۱۹۸- مخ)

***

**یوم:**

د پښتو په نورو لهجوکي د (یوم) له پاره (بېل) لغت عام استعمال لري. خوشحال خان ئې (یوم) بولي.

د دهقـان فـهم پـه پانه* یا پـه **یـوم** دی
د سپاهي نظـر پـه تـوره، پـه تیـر کش وي
(۳۶۷- مخ)

میرزاخان وایي:

---

* پانه به ئې ښایي د اغاز په مانا وي. اغاز د لرگي وي، او پانه د اوسپني وي (ع. پالوال).

د پندار پــه نوک ئې گروي
شرک ئې عين د زړه **يوم** دی
(۵۲ – مخ)

***

**يوې:**

**په نورو لهجو کې ئې قلبه بولي.**

**اشرف خان هجري ويلي دي:**

د فرقت **يوې** مې دل هسې سادين کړ
چې ئې بېخ د عيش يوړ د غم پـه سپاره
(۱۲۰– مخ)

**حميد ويلي دي:**

ستور پـه **يوې** کې پـه کيل برابر درومي
ولې تـه لـه شـــرعې درومې ناصـواب
(کليات – ۳۳مخ)

***

## ۴، ۲: متفرقات:

**ده غلامان*:**

**په دې نامه د کندهار په جنوب کې يو کلی ستـه. کندهاريان يو متل لري چې وايي: "په مريانو که اباديدلای، اوس به ده غلامان اباد وای". رحمان بابا هم "ده غلامان" د ځای او کلي په معنا راوړی دئ (۱۹۳– مخ). داسې ښکاري چې د سيمې له پاره دا نوم يوازې**

---

* "که په مريانو آباديدلای، ده غلامان به آباد سوئ وای". که په وګړو آباديدلای، کندهار به آباد سوئ وای (ع. پالوال).

په کندهار پوري محدود پاته سوی نه دئ.

***

**چغتی:**

په کندهار کي چغتایانو (چغتانیانو) (مغولو) ته چغتی وايي.

د چغتي په نامه په کندهار کي يوه کورنۍ سته.

هجري وايي:

ما به محبّس غمونه ژوول
که رشوت د **چغتي** په دربار پور وای
(۵۱۵ - مخ)

په چاپي متن کي "وی" دئ.

***

**مغولګۍ:**

د خوشحال خان ختک په يوه بيت کي پارسي ژبه "مغولګۍ" بلله سوې ده.

ما ساده پښتانه څه زده چې ئې وايي
په پارسۍ پارسۍ خبرو **مغولګۍ***
(۴۹۳ - مخ)

هجري هم وايي:

د پښتو ژبه مي ناوې کړه په نظم
د **مغلو** په شعر هم عالي مکان يم
(۱۰۱ - مخ)

د فارسي ژبي له پاره دا نوم ما له ملاعبدالباقي افغان پرته د بل چا په کلام کي که لوستلی نه دئ. ملاعبدالباقي افغان په تهذيب

---

* ښايي مغولګۍ به يوه ښځه وه چي پارسي به ئې ويله (ع. پالوال).

**الواجبات (شپېږم مخ) کي وايي:**

فارسي خواره د کم ځای چي آب ونان و څه ته وايي
**مغـــولي** ژبې بلله، پښتنو ته کلـه ښـــايي

**دا مشابهت ما ته په زړه پوري دئ خو دا خبره د ژبني مشابهت په کتار کي نه شمېرم، هسي مي د حسن ختام په توګه راووړ.**

***

**۴، ۳: نتیجه:**

**د پښتو په کلاسیکه مرحله کي د پښتو قواعد، لغتونه، اصطلاحات، تلفظي ځانګړتیاوي تر ډېري اندازې پوري د پښتونخوا له یوه سره تر بله سره پوري سره یو شان او یا سره نزدې وې. په دغه دوران کي لکه "ټول پښتون چي له کندهاره تر اټکه د ننګ په کار کي پټ و آشکار" سره یو وو، دغه راز ئې ژبه او لهجې هم د نن په شان سره لیري نه وې. تر کلاسیکي مرحلې وروسته، چي د کال و میاشتي په حساب ئې ما ته نېټه ټاکل مشکله خبره ده، پر پښتنو او پښتو باندي مځکني و اسماني اپتونه نازل سوي دي او دې اپتو ئې پر ژبه هم درنې اغېزې کړې دي. په پښتو کي خورا ژور ګرامري، تلفظي او لغوي بدلونونه راغلي دي. په دې بدلونو کي د اقتصادي، سیاسي او ټولنیزو حوادثو تر اغېزې لاندي د پښتو ژبي لهجو د یووالي او نزدیکت پر ځای د سره لیري والي لار اخیستې ده او دا لړۍ تر دا ننه هم روانه ده.**

**تر څو په پښتنو کي د قبیلویت روحیه واکمنه وي، د ژبي د لهجو موسسات به ئې هم ژوندي او فعال وي. د لهجو نفي کول له**

ځان سره نوري ستونزي راولاړوي خو نزدېکت ئې هم ځان ته خپل تاداو غواړي. دا تاداو په نصیحت کولو نه ودانېږي، بلکي د پښتنو په ژوند کي د اقتصادي او ټولنیزو بدلونو په راتګ سره د فرهنګ او ژبي موسسه هم ورسره بدلون مومي. ګویا د ژبي د یووالي او کره والي او د لهجو د نزدېوالي ستر کار د پښتنو په ژوند کي د اقتصادي و ټولنیزو تغییراتو او تبدلاتو سره تړلی دئ.

په ژبه کي بدلونونه راتلل یا راوستل یوه طبیعي پېښه ده. وایي، بدلون د طبیعت ناموس دئ. د ژبي د بدلون په وړاندي د لهجو عکس العمل یو راز نه وي. ځیني لهجې دا بدلونونه ومني او ځیني ئې بیا پخوانۍ قاعدې، لغتونه او تلفظونه ئې وساتي. لکه تاسي چي په دې کتاب کي ولوستل، د پښتو لوېدیځي لهجې د کلاسیک ادب ډېر څه خوندي ساتلي دي او دا هغه څه دي چي ما ئې په دې خپل کتاب کي د ځرګندولو او بیانولو هڅه کړې ده. دا چي دې هدف ته په رسېدلو کي به څونه بریالی سوی یم، سپینېدل ئې په تاسي درنو لوستونکو پوري اړه لري.

خدایه! چا وته ئې کښېم، څوک به پرې پوه شي
ما ویلي هر یو بیت ئې دفترونه
(خوشحال ختک)

پای

اونټاریو، اوکویل – کاناډا
د جون اوله ۲۰۱۰ع
د سه شنبې ورځ

# د لیکوال چاپ او ناچاپ آثار

**چاپ سوي اثار :**

۱. سرمني او ښکي - شعري مجموعه - ۱۳۶۹ل = ۱۹۹۰ع، کراچي.
۲. پاشلي ويناوي - د مولوي صالح محمد هوتک - سريزه او حاشيې - ۱۳۶۹ل = ۱۹۹۰ع، کراچي.
۳. د ميرزا حنان بارکزي ديوان - سريزه، سمون او لغتنامه او خطاطي - ۱۳۷۰ل = ۱۹۹۱ع، کراچي.
۴. پوخ کاڼی - پټه خزانه يو واقعيت دئ - ۱۳۷۵ ل = ۱۹۹۶ ع، ټورنټو.
۵. احمدشاهي کندهار - لومړی ټوک، ۱۳۷۵ل = ۱۹۹۶ع، ټورنټو.
۶. ميرزا عبدالودود هوتک - ۱۳۷۷ ل = ۱۹۹۸ ع، صحاف نشراتي مؤسسه.
۷. پښتني قبيلې او روايتي شجرې - ۱۳۷۹ ش = ۲۰۰۰ ع، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه، جرمني.
۸. ښکار او کندهار - ۱۳۸۲ل = ۲۰۰۳ع، صحاف نشراتي مؤسسه.
۹. درنه کورنۍ (د علامه حبيب الله کندهاري کورنۍ) ۱۳۸۳ ل = ۲۰۰۳ ع، د علامه حبيبي د څېړنو مرکز.
۱۰. د پولادي امير تر سيوري لاندي، د فرانک مارتين ليکنه، پښتو ژباړه، ۱۳۸۳ل - د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه، جرمني.
۱۱. بحرالعلوم د دوست محمد خټک - لومړی ټوک، (سريزه، سمون او حواشي) ۱۳۸۳ل = ۲۰۰۴ع، صحاف نشراتي مؤسسه.
۱۲. روڼي شپې - شعري مجموعه - ۱۳۸۴ش = ۲۰۰۵ع، صحاف نشراتي مؤسسه.

۱۳. سل بګړې يو پوړنی - د هوتکو ملي، روحاني، علمي ادبي او تولنيزي څېړې - ۱۳۸۴ د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه، جرمني.
۱۴. شين سترګي مستخدمين په افغانستان کي. څو قسطه په ګوربت مجله کي. په کتابي بڼه ۱۳۸۵ل، صحاف نشراتي مؤسسه.
۱۵. احمدشاهي کندهار - دوهم ټوک، ۱۳۸۴ ل = ۲۰۰۵ ع، علامه رشاد خپرندويه ټولنه/کندهار.
۱۶. د علامه رشاد د کندهار يادابښتونه، (ترتيب، سمون او لمنليکونه) ۱۳۸۶ل = ۲۰۰۷ ع، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه، جرمني.
۱۷. د عبدالروف بېنوا ميرويس نيکه، (سريزه او لمنليکونه) چاپ: ۱۳۸۴ل = ۲۰۰۵ ع، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه، جرمني.
۱۸. پر معياري ژبه د معيار په ژبه يوه څېړنه، ۱۳۸۵ل = ۲۰۰۶ ع، علامه رشاد خپرندويه ټولنه/کندهار.
۱۹. د سيد جمال الدين افغان تتمة البيان فی تاريخ افغان، د پښتو ژباړي (د محمد رفيق حبيبي په قلم) ترتيب، سمون او لمنليکونه - ۱۳۸۵ل = ۲۰۰۶ ع، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه، جرمني.
۲۰. کندهاري وروڼه (کندهاري سرداران)، ۱۳۸۷ش = ۲۰۰۹ع، علامه رشاد خپرندويه ټولنه/کندهار.
۲۱. پښتو! ستا ميني بوداپيست ته بوتلم، ۱۳۸۷ش = ۲۰۰۸ع، علامه رشاد خپرندويه ټولنه/کندهار.
۲۲. احمدشاهي شهنامه، د متن سمونه، سريزه او لمنليکونه - پېژندنه او تعليقات د علامه رشاد، ۱۳۸۷ش = ۲۰۰۸ع، علامه رشاد اکاډيمي، کندهار.
۲۳. د شمس الدين کاکړ ديوان، سريزه او لغتنامه، ۱۳۸۸ش = ۲۰۰۹ع، صحاف نشراتي مؤسسه.
۲۴. د ميرزا حنان بارکزي ديوان (بشپړ کلام)، سريزه، سمون او لغتنامه، ۱۳۸۸ش = ۲۰۰۹ع، صحاف نشراتي مؤسسه.

۲۵. د لوی احمدشاه بابا دېوان (مشهور په دېوان هرا)، ترتیب او مقابله، ۱۳۸۸ش = ۲۰۰۹ع، صحاف نشراتي مؤسسه.
۲۶. له (Erinn Banting) کاناډایي مېرمني سره د (Afghanistan) نومي کتاب په لیکلو کي مرسته او همکاري، (Crabtree Publishing Co)، کاناډا، ۲۰۰۳ع. دا کتاب په دریو برخو (Culture, Land, People) کي خپور سو، خو پر مطالبو باندي یې په ملګروملتو کې د افغانستان د هماغه وخت استازي مشورو تر دې اندازې پوري سیوري واچاوه، چي د لوی احمدشاه بابا عکس لا هم پکښې چاپ نه سو او کتاب زما (هوتک) د مشورو اولارښوونو پر خلاف چاپ سو.
۲۷. ادیب شیخ، ۱۳۸۸ل، د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست
۲۸. کچکول (د مقالو لومړۍ برخه)، ۱۳۸۹ل، د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست
۲۹. کچکول (د مقالو دوهمه برخه)، ۱۳۸۹ل، د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست
۳۰. له کندهاره تر اټکه، ۱۳۸۹ل، علامه رشاد خپرندویه ټولنه/کندهار

## ناچاپ اثار:

۱. د هوتکو نومیالي (دوهم ټوک).
۲. د بې ادبه ادب څېړنه.
۳. پرتلیز کلیز، د هجري قمري او عیسوي سنو اړونه او رااړونه.
۴. د غره او د وره (ژوند پېښې).
۵. کچکول، د مقالو مجموعه - ۶ ټوکه.
۶. د افغانستان انتالوجي (۱۰۰۰ مخه) ټایپ سوې نسخه یې د بیهقي کتاب چاپولو په مؤسسه کي خوندي وه. اوس یې حال نه لرم.
۷. د مخلص کندهاري د کلام لغوي زېرمه
۸. د علامه رشاد جغرافیایي یادابښتونه - سریزه، ترتیب او کمپوز.

